صفحه

Ÿ

الحمد لله رب العالمين، اللهم صلِّ على محمد وآله وسلم وبارك، اللهم إنَّا نسألك من الخير كله عاجله وآجله ما علمنا منه وما لم نعلم، ونعوذ بك من الشر كله عاجله وآجله ما علمنا منه وما لم نعلم، اللهم إنَّا نعوذ بك من فتنة القول والعمل، آمين اللهم آمين، أمَّا بعد:

# سريزه

جنت هغه لوی اجر او عظیم ثواب دی چې الله خپلو دوستانو ته او هغه کسانو ته تیار کړی چې په دنیا کې د اسلامي تعلیماتو مطابق ژوند وکوي د جنت نعمتونه داسې نعمتونه دي چې هېڅ ډول نقص پکې نه وي او نه پکې څه ډول کمزوري وي داسې نعمتونه دي چې انسانانو نه په دنیا کې لیدلي ، نه یې آورېدلي دي او نه د چا په زړه کې ورتېر شوي دي په دنیا کې یې الله او د هغه رسول مونږ ته صرف په هغه اندازه ذکر کړی دی چې مونږ وربانديې پوهیږو او د هغه نعمتونو حقیقي ذکر او بیان په دنیا کې هېڅ الفاظ نلري او انساني عقل په دنیا کې د هغه نعمتونو د ادراک نه عاجز دی په یو حدیث قدسي کې الله فرمایي : **أعددت لعبادي الصالحين ما لا عين رأت، ولا أذن سمعت،ولا خطر على قلب بشر** (ترجمة : ما د نیکانو بندګانو لپاره داسې نعمتونه تیار کړي دي چې نه سترګو لیدلي دي نه غوږونو آورېدلي دي او نه د کوم انسان په زړه کې ورت تېر شوي دي) ددې حدیث نه وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل که پدې اړه ستاسې خوښه وي دا آیت تلاوت کړئ : **فَلا تَعْلَمُ نَفْسٌ ما أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاء بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ** .[1]

ترجمة : پس نه دی معلوم هېڅ نفس ته (نه فرښتې

---

[1] **سورة السجدة آية ١٧**

او نه نبي ته) هغه شی چې پټ کړل شوی دی دوی ته له یخوالي د سترګو نه د پاره د جزاء د هغه عمل چې وو دوی چې کاوه به یې (پټ) .

په دنیا کې چې څومره نعمتونه دي هغه د جنت د ادني ترین نعمت سره بالکل د مقایسې وړ نه دي لکه وروسته به هم راشي چې په دنیا کې که څوک د ټولې دنیا واکدار شي او په دنیا کې چې څومره قیمتي شیان دي د هغې ټولو مالک شي او دا ټول ددنیا شیان او نعمتونه د خپل ځان لپاره وکاروي او استعمال کړي ددې هرڅه سره په دنیا کې د یو ادنی جنتي سره د یو ادنی نعمت په اندازه سهولت ځان ته نشي برابرولی ددې امله خو حضرت سهل بن سعد الساعدي فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **موضع سوط في الجنة خير من الدنيا وما فيها** .[1]

ترجمة : په جنت کې د یوې دُرې په اندازه ځای تر ټولې دنیا او هغه څه نه غوره دی چې په دنیا کې دي .

ددې امله خو چې څوک جنت ته ننوزي دا په رښتیا سره کامیاب شول او همدا رښتینې کامیابي ده الله فرمایي : **كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَمَن زُحْزِحَ عَنِ النارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ** .[2]

ترجمة: هر یو نفس څکونکی د (خوند) د مرګ دی او بېشکه هم دا خبره د ه چې پوره به درکړل شي تاسې ته اجرونه ستاسې په ورځ د قیامت کې نو هرڅوک چې لرې کړل شو له اوره (د دوزخ) او داخل کړل شو جنت ته نو په تحقیق مراد ئې وموند (بریالی شو) .

---

[1] **صحيح البخاري**
[2] **سورة آل عمران آية ١٨٥**

په بل ځای کې الله فرمايي : **تِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ يُدْخِلْهُ جَنَاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ** [1] .

ترجمة : دا (د يتيمانو ، ميراثونو ، وصيت او د دين تېر شوي حکمونه) حکمونه د الله دي او هرڅوک چې ومني حکم د الله او د رسول د ده نو داخل به کړي الله دغه (اطاعت کونکي په هسې) جنتونو کې چې بهيږي له لاندې د (مانيو او ونو د) هغو ويالې همېشه به وي (دوی) په دې (جنتونو) کې او دا (ننوتل جنت ته) کاميابي لو يه ده .

په بل ځای کې الله فرمايي : **وَعَدَ اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنَاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَاتِ عَدْنٍ وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ أَكْبَرُ ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ.** [2]

ترجمة : وعده کړېده الله له نارينه وو مؤمنانو او له ښځو مؤمناتو سره د جنتونو چې بهيږي له لاندې (د مانيو او ونو) د هغو (څلور قسمه) ويالې تل به وي دوی په دغو (جنتونو) کې او (وعده کړې ده الله ) د ځايونو پاکو (چې ثابت دي) په جنتونو د تل اوسېدلو کې او رضاء له (جانبه د) الله ډېره لويه ده (له جنتونو او نعمتونو او نورو څخه) دغه (رضاء د الله ) هم دغه بری دی ډېر لوی.

په دنيا کې ژوند د مختلفو حالتونو سره مخامخ کيږي کله پکې نيک بختي او کله پکې بد بختي وي ، کله پکې خوشحالي او کله پکې خفگان وي کله پکي بيماري او کله صحت وي ، کله پکې د کاميابي خوشحالي او کله پکې د ناکامي غم وي

---

1 **سورة النساء آية ١٣**
2 **سورة التوبة آية ٧٢**

پدې دنیا کې له ټولو اړخونو انسان نه خوشحالیږي خامخا له یو طرف نه پریشاني او وېره موجوده وي الله ددې دنیا په اړه فرمایي : وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ. [1]

ترجمة : او نه دی ژوندون لږ خسیس د دنیا مګر پنګه د غولېدو ده (چې فایده یې لږ او فنا ئې زر ده).

په بل ځای کې الله فرمایي : وَاضْرِبْ لَهُمْ مَثَلَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا كَمَاءٍ أَنْزَلْنَاهُ مِنَ السَّمَاءِ فَاخْتَلَطَ بِهِ نَبَاتُ الْأَرْضِ فَأَصْبَحَ هَشِيمًا تَذْرُوهُ الرِّيَاحُ وَكَانَ اللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ مُقْتَدِرًا (45) الْمَالُ وَالْبَنُونَ زِينَةُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَالْبَاقِيَاتُ الصَّالِحَاتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَخَيْرٌ أَمَلًا (46) . [2]

ترجمة : او وښیه بیان کړه دغو (خلقو) ته مثال د دې ژوندون لږ خسیس په تازګي او سرعت زوال کې) په مثل د هغو اوبو چې نازلې کړي دي مونږ هغه اوبه له (طرفه د) آسمانه نو ګډ یو بل سره ګډ وډ شي په سبب د دې (اوبو) سره زرغونه د زمکې نو صبا ته وګرځي (دغه زرغونه) وچه کلکه ماته ماته چې آلوزوي ئې بادونه او دی الله پر هرڅیز باندې (چې اراده وفرمایي) توانا قادر (چې ځینې د هغو انشاء او افنا دي) مال (د دنیا) او زامن (چې پکې اخروي مفاد نه وي) زینت (رونق) ښائست د دې ژوندون لږ خسیس دی او (په اعتبار د جزاء) باقي پاتې کېدونکي نیک عملونه خیر غوره دي په نزد د رب ستا له جهته د ثوابه او (خیر) غوره دی له جهته د امید.

ددې وجې نه خو رسول الله ﷺ هم د دنیا تعریف داسې کړی چې دا د یو مؤمن لپاره د بندیخانې حیثیت لري چې لدې نه بهر ورته ښه ژوند موجود

---

[1] سورة آل عمران آية ١٨٥
[2] سورة كهف

دی او د کافر لپاره دا د جنت حیثت لري چې لدې نه بهر شي نو د هر ډول عذابونو به ورته مخه شي حضرت ابو هرېره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : الدُّنْيَا سِجْنُ الْمُؤْمِنِ وَجَنَّةُ الْكَافِرِ .[1]

ترجمة : دنیا د مؤمن بندیخانه او د کافر جنت دی .

حضرت علي ته یوه ورځ چا وویل : ددنیا په اړه څه راته ووایه ده مبارک ورته وفرمایل : وَمَا أَصِفُ لَكَ مِنْ دَارٍ مَنْ صَحَّ فِيهَا أَمِنْ ، وَمَنْ سَقَمَ فِيهَا نَدِمَ ، وَمَنِ افْتَقَرَ فِيهَا حَزِنَ ، وَمَنِ اسْتَغْنَى فِيهَا فُتِنَ ، حَلاَلُهَا حِسَابٌ ، وَحَرَامُهَا عَذَابٌ ؟ .[2]

ترجمة : زه به تاته د هغه دار په اړه څه ووایم چې په هغه کې څوک جوړ شي نو په امن کې شي او چې پکې بیمار شي نو پښېمان شي چې پکې غریب شي نو خفه شي چې پکې مالدار شي نو په فتنه کې واقع شي دلته چې څومره حلال شیان دي ددې به حساب ورکول کیږي او چې څومره حرام شیان دي ددې په بدل کې به بنده ته عذاب ورکول کیږي .

پدې دنیا کې هوښیار انسان هغه دی چې دا دنیا په صحیح معنی کې وپېژني او په کومو خلکو چې دا دنیا تیریږي او هغوی لدې دنیا نه ځي د هغوی نه باید هوښیار سړی عبرت واخلي او په دنیا کې داسې څه وکوي چې دده د آخرت لپاره په کار شي او داسې څه وکوي چې په نتیجه کې یې تر مرګ وروسته ابدي او دائمي ژوند ښکلی او ښائسته شي نو رښتونی هوښیار هماغه انسان دی چې په زړه یې لوی غم یوازې د آخرت غم وي حضرت انس بن مالک فرمایي رسول الله صص فرمایل : مَنْ

[1] رواه مسلم
[2] جواهر العلم لابن عبد البر

كَانَتِ الآخِرَةُ هَمَّهُ ، جَعَلَ اللهُ غِنَاهُ فِي قَلْبِهِ ، وَجَمَعَ لَهُ شَمْلَهُ ، وَأَتَتْهُ الدُّنْيَا وَهِيَ رَاغِمَةٌ ، وَمَنْ كَانَتِ الدُّنْيَا هَمَّهُ ، جَعَلَ اللهُ فَقْرَهُ بَيْنَ عَيْنَيْهِ ، وَفَرَّقَ عَلَيْهِ شَمْلَهُ ، وَلَمْ يَأْتِهِ مِنَ الدُّنْيَا إِلاَّ مَا قُدِّرَ لَهُ .[1]

ترجمه : د چا چې مقصد او نيت آخرت وي الله به د هغه په زړه کې غناء ور واچوي او د هغه تيت خپاره کارونه به ورته را ټول کړي او د نيا به پداسې حالت کې ده ته راشي چې ذليله به وي او د چا چې قصد او نيت دنيا وي الله به فقر د هغه د سترګو په وړاندې کيږدي او د هغه کارونه به ورته خپاره کړي او له دنيا نه به هغه څه ورکول کيږي چې کوم ده ته مقرر وي .

يعني فقر به دده د سترګو په وړاندې وي چې هر وخت به دی ترېنه ډاريږي او هر وخت به دا محسوس کوي چې دی خلکو ته اړ او محتاج دی او دده کارونه به نور هم ورته خپاره واره کړي چې ده ته به د خپلو کارونو را ټولول سخت او مشکل وي او چې څومره کوښښ وکوي ايله به له دنيا نه هغه برخه پورته کوي چې ده ته مقرره کړل شوې وي .

په دنيا کې چې څومره نعمتونه دي څومره د لذت شيان دي دا ټول موقت دي دا ټول فاني کېدونکي دي دلته هېڅ شی هم د همېشه لپاره نه پاتې کيږي او دلته چې څومره د قدر وړ شی دی هغه هم ناقص وي حضرت علی حضرت عمار ته فرمايل :
لا تحزن على الدنيا فإن الدنيا ستة أشياء: مأكول ومشروب وملبوس ومشموم ومركوب ومنكوح، فأحسن طعامها العسل وهو بزقة ذبابة، وأكثر شرابها الماء يستوي فيه جميع الحيوان، وأفضل ملبوسها الديباج وهو نسج دودة، وأفضل المشموم المسك وهو دم فأرة، وأفضل المركوب الفرس وعليها يقتل الرجال،

---

[1] سنن الترمذي

وأما المنكوح فالنساء وهو مبال في مبال .[1]

ترجمة : په دنيا باندې مه خفه كيږه (كه د پكې څه شى له لاسه وتل او يا پكې څه نقصان درته رسېدو) ځكه دنيا شپږ شيان دي خوراكي شيان دي ، د څښلو شيان دي ، د آغوستلو شيان دي ، د بوى كولو شيان دي ، سپرلى دي ، او هغه دي چې په نكاح كيږي.

- په خوراكونو كې يې غوره خوراک شهد دي او هغه په حقيقت كې د مچۍ نارې دي .
- او ډېر څښل كېدونكى شى يې اوبه دي په هغې كې ټول حيوانات سره برابر دي .
- په جامو كې يې غوره جامه وريښم دي هغه د يو چينجي محصول دى .
- د بوى كولو په شيانو كې غوره شى يې مشک دي هغه د يو حيوان وينه ده .
- او د سپرلۍ په شيانو كې يې غوره شى آس دى او همدا دى چې د خلكو د وژلو لپاره كارول كيږي .
- او هغه چې په نكاح كيږي هغه خو ښځې دي او ښځې خو غم دى .

او په رښتيا راحت او لذت خو هغه دى چې يو مسلمان ته به له مرګ نه وروسته وركول كيږي او ورسته له هغه به وركول كيږي چې په جنت كې خپل لمړى قدم كيږدي الله فرمايي : وَقَالَ الَّذِي آمَنَ يَا قَوْمِ اتَّبِعُونِ أَهْدِكُمْ سَبِيلَ الرَّشَادِ (38) يَا قَوْمِ إِنَّمَا هَذِهِ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا مَتَاعٌ وَإِنَّ الْآخِرَةَ هِيَ دَارُ الْقَرَارِ (39) .[2]

ترجمة : او وويل هغه (سړي) چې ايمان ئې راوړى وو اې قومه زما متابعت وكړئ زما چې وښيم تاسې

---

[1] تفسير القرطبي
[2] سورة غافر

ته لاره د هدايت (او صواب) اې قومه زما بېشكه هم دا خبره ده چې دغه ژوندون لږ خسيس يوه متاع (فايده) لږ ده او بېشكه آخرت هم هغه دى كور د قراري (بې زواله) .

په دنيا كې كه لذتونه دي او كه تكليفونه دي د آخرت د نعمتونو او تكليفونو په نسبت دا هېڅ هم نه دي حضرت انس بن مالك فرمايي:

رسول اللهﷺ فرمايل : **يُؤْتَى بِأَنْعَمِ أَهْلِ الدُّنْيَا ، مِنْ أَهْلِ النَّارِ ، يَوْمَ الْقِيَامَةِ ، فَيُصْبَغُ فِي النَّارِ صَبْغَةً ، ثُمَّ يُقَالُ لَهُ : يَا ابْنَ آدَمَ ، هَلْ رَأَيْتَ خَيْرًا قَطُّ ؟ هَلْ مَرَّ بِكَ نَعِيمٌ قَطُّ ؟ فَيَقُولُ : لاَ ، وَاللهِ ، يَا رَبِّ ، وَيُؤْتَى بِأَشَدِّ النَّاسِ فِي الدُّنْيَا ، مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ ، فَيُصْبَغُ فِي الْجَنَّةِ صَبْغَةً ، فَيُقَالُ لَهُ : يَا ابْنَ آدَمَ ، هَلْ رَأَيْتَ بُؤْسًا قَطُّ ؟ هَلْ مَرَّ بِكَ شِدَّةٌ قَطُّ ؟ فَيَقُولُ : لاَ ، وَاللهِ ، يَا رَبِّ ، مَا مَرَّ بِي بُؤُسٌ قَطُّ ، وَلاَ رَأَيْتُ شِدَّةً قَطُّ** .[1]

ترجمة : د قيامت په ورځ به هغه كس راوستل شي چې په دنيا كې ښه نعمتونه وركړل شوي وو او ښه د راحت ژوند يې وو لكن په آخرت كې د هغه كسانو له جُملې څخه وي چې اور ته به يې ورتلل وي په اور كې به يوه غوټه وركړل شي بيا به ورڅخه پوښتنه وشي اې د آدم زويه تا په دنيا كې څه خير ليدلى وو؟ تا كوم نعمت ليدلى وو؟ دا بنده به ورته ووايي نه والله يا ربه او بيا به داسې كس راوستل شي چې په دنيا كې يې ډېر سخت او په تكليفونو كې ژوند تېر كړو لكن په آخرت كې د اهل الجنة څخه وي په جنت كې به يوه لحظه ور ننه ايستل شي بيا به ورڅخه پوښتنه وشي اې بني آدمه په دنيا كې د كله هم څه تكليف ليدلى وو؟ كله دربانديز سختي تېره شويده؟ دى به ورته وايي نه والله يا ربه په ما باندې هېڅ سختي نه ده تېره شوې او نه مې څه سختي ليدلې ده .

[1] صحيح مسلم

یعني هغه کس چې په دنیا کې ښه نعمتونه ورسره وو او ښه ژوند یې وو لکن د اهل النار څخه وو چې د اور یوه لحظه وګوري نو د دنیا ټولې مزې او راحتونو به ورڅخه هېر شي او هغه کس چې په دنیا کې یې تکلیفي ژوند وو لکن په آخرت کې له اهل الجنة څخه دی چې په آخرت کې د جنت یوه لحظه وویني نو د دنیا ټول تکلیفونه به ورڅخه هېر شي .

حضرت احمد بن حنبل ته په مجلس کې یو کس حاضر شو ورته یې وویل : ای ابا عبد الله زه تاته له خراسان څخه راغلم او لتا څخه د یوې مسئلې پوښتنه کول غواړم هغه ورته وویل : پوښتنه د وکوه ... هغه کس وویل : بنده د راحت خوند څه وخت څکلی شي؟ حضرت احمد بن حنبل ورته وویل : کله چې په جنت کې اول قدم کیږدي .[1]

نو ددې امله په دنیا کې چې هرمسلمان وي هغه باید په زړه کې شوق ولري چې جنت ته ولاړ شي او د جنت سره د یو انسان شوق هغه وخت پیدا کیږي چې انسان له هغه شیانو څخه خبر شي چې په جنت کې د جنتیانو لپاره تیار کړل شوي دي او د همدې مقصد لپاره ستاسې دا کتاب ستاسې تر لاسونو پورې در رسېدلی دی پدې کتاب کې به مونږ د جنت له صفاتو ، په جنت کې له نعمتونو او جنت ته د تللو په لارو او عملونو باندې خبرې وکوو سره ددې چې د جنت د نعمتونو په اړه خو الله فرمایلي دي چې په جنت کې به داسې نعمتونه وي چې نه سترګو لیدلي ، نه غوږونو آورېدلي او نه د کوم بشر په ذهن کې ورت تېر شوي وي لکن بیا هم د احادیثو او قرآني آیتونو په رڼا کې به پدې کتاب کې کوښښ وشي تر لوستونکي پورې د جنت په اړه څه خبرې ور ورسوي .

---

[1] طبقات الحنابلة

# د جنت په اړه ځينې قرآني آيتونه

د جنت د نعمتونو ذکر په قرآن کريم او په احاديثو کې په ډېرو ځايونو کې شوی دی چې د ټولو له را ټولولو نه يې زما دا وړوکی کتاب په سل هاوو ځله عاجز دی خو زه بيا هم مشت نمونه خروار ستاسې په وړاندې کېښودل غواړم الله د جنت د نعمتونو په اړه فرمايي : وَالسَّابِقُونَ السَّابِقُونَ (10) أُوْلَئِكَ الْمُقَرَّبُونَ (11) فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ (12) ثُلَّةٌ مِنْ الْأَوَّلِينَ (13) وَقَلِيلٌ مِنْ الْآخِرِينَ (14) عَلَى سُرُرٍ مَوْضُونَةٍ (15) مُتَّكِئِينَ عَلَيْهَا مُتَقَابِلِينَ (16) يَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُخَلَّدُونَ (17) بِأَكْوَابٍ وَأَبَارِيقَ وَكَأْسٍ مِنْ مَعِينٍ (18) لَا يُصَدَّعُونَ عَنْهَا وَلَا يُنزِفُونَ (19) وَفَاكِهَةٍ مِمَّا يَتَخَيَّرُونَ (20) وَلَحْمِ طَيْرٍ مِمَّا يَشْتَهُونَ (21) وَحُورٌ عِينٌ (22) كَأَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ (23) جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ (24) لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا تَأْثِيمًا (25) إِلَّا قِيلاً سَلَامًا سَلَامًا (26).[1]

ترجمة : او ړومبي کېدونکي (حسناتو ته) هم دوی ړومبي کېدونکي دي (جنت ته) هم دوی نژدې کړل شوي دي (الله ته) په جنتونو د نعمتونو کې به وي لو يه ډله به وي له اولينو ړمبنيو څخه او لږ دي له آخرينو وروستنيو څخه ناست به وي (جنتيان) په تختونو او بدليو شويو چړاو کړل شويو په زرو جواهرو باندې چې تکيه وهونکي به وي (جنتيان) په هغو (تختونو) باندې مخامخ کېناستونکي يو بل ته ګرځي به په دوی باندې (د پاره د خدمت) هلکان تل پاتې کېدونکي (په هلکوالي سره) په ګلاسونو او په کوزو سره او په کاسو لوښيو سره له صافو پاکو شرابو بهېدونکيو څخه چې نه به سر خوږيږي له دغو (شرابو) او نه به ورڅخه څښونکی بې هوښه کيږي او (ګرځي به په دوی باندې هلکان په) ميوو له هغه راز (قسم) چې ئې خوښوي (جنتيان) او غوښو د مرغانو سره له هغه ډوله (قسمه) چې زړونه ئې غواړي او

1 سورة الواقعة

(ګرځي به په دغو جنتیانو باندې) حورې پیمخې غټې سترګې په شان د ملغلرو ساتلیو شویو په پوښونو کې جزاء ورکول دي په هغو چې وو دوی چې کول به یې (له نیکیو په دنیا کې) نه به اوري دوی په دغه (جنت کې) چټي (بېکاره) خبرې او نه د ګناه خبرې مګر اوري یوه خبره سلام سلام (یعني تل به سلام اچوي جنتیان یو په بل باندې په جنت کې)

په همدې سورة کې الله مخکې فرمایي : **وَأَصْحَابُ الْيَمِينِ مَا أَصْحَابُ الْيَمِينِ (27) فِي سِدْرٍ مَخْضُودٍ (28) وَطَلْحٍ مَنْضُودٍ (29) وَظِلٍّ مَمْدُودٍ (30) وَمَاءٍ مَسْكُوبٍ (31) وَفَاكِهَةٍ كَثِيرَةٍ (32) لَا مَقْطُوعَةٍ وَلَا مَمْنُوعَةٍ (33) وَفُرُشٍ مَرْفُوعَةٍ (34) إِنَّا أَنشَأْنَاهُنَّ إِنشَاءً (35) فَجَعَلْنَاهُنَّ أَبْكَارًا (36) عُرُبًا أَتْرَابًا (37) لِأَصْحَابِ الْيَمِينِ (38) ثُلَّةٌ مِنْ الْأَوَّلِينَ (39) وَثُلَّةٌ مِنْ الْآخِرِينَ (40).** [1]

ترجمة : او ملګري یاران د ښي لاس څومره ښه دي ملګري یاران د ښي لاس په بېرو بې اغزیو کې به وي او په کیلو له بیخه تر سره ډکو کړل شویو کې به وي او په سیوریو اوږدو کړیو شویو همېشه وو کې به وي او په اوبو بهېدونکیو توئېدونکیو همېشه وو کې به وي او په مېوو ډېرو کې به وي چې نه به قطع کولی کیږي په هېڅ وقت او نه به منع کولی کیږي په هېڅ عذر سره او په فرشونو اوچتو کړل شویو کې به وي (په پالنګونو باندې) بېشکه مونږ نوي پیدا کړي دي دغه حورې په یوه ښه پیدا کولو سره نو ګرځولي مو دي دوی پېغلې عاشقانې (پر جنتیانو خاوندانو خپلو) همزولې (په خپل مابین کې) د پاره د ملګرو یارانو د ښي لاس (اصحاب الیمین به) لویه ډله وي له اولینو او ړومبنیو خلقو څخه او لویه ډله به وي له آخرینو وروستنیو خلقو نه.

[1] سورة الواقعة

وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُولَئِكَ رَفِيقًا. [1]

ترجمة : او هرڅوک چې حکم ومني د الله او د رسول الله ﷺ نو دغه کسان به له هغو سره وي (په جنت کې) چې انعام کړی دی الله پر دوی باندې چې انبیاء دي او صدیقان دي او شهیدان دي او صالحان دي او ښه دي دغه کسان له جهته د رفاقته (چې ښه ملګري دي) .

وَسِيقَ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ إِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا حَتَّى إِذَا جَاؤُوهَا وَفُتِحَتْ أَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلامٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوهَا خَالِدِينَ . وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي صَدَقَنَا وَعْدَهُ وَأَوْرَثَنَا الأَرْضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَاء فَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ . وَتَرَى الْمَلائِكَةَ حَافِّينَ مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَقُضِيَ بَيْنَهُم بِالْحَقِّ وَقِيلَ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ . [2]

ترجمة: او بېول کيږي به هغه کسان چې وېرېدل به دوی له ربه خپله طرف د جنت ته ډلې ډلې تر هغه پورې چې راشي دوی جنت ته حال دا چې پرانیستلی شوې به وي دروازې د دغه (جنت) او وبه وايي دوی ته خزانچيان (متصرفان) د جنت سلام د وي پر تاسې پاک يئ تاسې (له ګناهونو) پس ننوځئ جنت ته په دې حال کې چې همېشه اوسېدونکي اوسئ (په ده کې) او وبه وايي دغه (جنتيان) ټول ثناء صفت خاص الله ته دي هغه (الله) چې رښتيا ئې کړه له مونږ سره وعده خپله او ميراث ئې راکړه مونږ ته زمکه (د جنت) چې ځای نيسو له جنته هر ځای چې خوښ شي زمونږ پس ښه دی اجر د (نېک) عمل کوونکيو او وينې به ته (اې محمده ﷺ) فرښتې طواف کوونکې چاپېر له عرشه چې تسبيح به وايي دوی له حمده ثنا د رب د دوی سره او حکم به وکړل شي په منځ د خلقو

[1] سورة النساء آية ٦٩
[2] سورة الزمر آية ٧٣-٧٥

کې په حق سره او وبه ویل شي چې ټوله ثناء ده خاص الله لره ته چې رب پالونکی د عالمیانو دی.

وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ تَجْرِي مِن تَحْتِهِمُ الأَنْهَارُ وَقَالُواْ الْحَمْدُ لِلّهِ الَّذِي هَدَانَا لِهَذَا وَمَا كُنا لِنَهْتَدِيَ لَوْلا أَنْ هَدَانَا اللّهُ لَقَدْ جَاءتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ وَنُودُواْ أَن تِلْكُمُ الْجَنَّةُ أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ .[1]

ترجمة : او وبه باسو مونږ هغه چې په سینو د دغو (جنتیانو) کې دي له کینو څخه بهیږي به له لاندې د (مانیو او ونو د) دوی ویالې او وائي به دغه (جنتیان) ګردې (ټولې) ثناوې او احسانات خالص الله لره دي هغه (الله ) چې برابر ئې کړو مونږ د (مقام) ته او نه وو مونږ پخپله چې موندلې مو وی دا لاره که نه وو هدایت کړی مونږ ته الله په تحقیق راغلي وو رسولان د رب په حقه سره او اواز به وکړل شي دغو (جنتیانو) ته داسې چې دغه جنت په میراث درکړل شوی دی تاسې ته په سبب د هغه چې وئ تاسې چې کول به مو (له نېکیو په دنیا کې) .

وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ (22) إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ (23) .[2]

ترجمة : ځینې مخونه (یعني د مؤمنانو به) په دغې ورځې (د قیامت) کې ښائسته تازه روښانه وي خاص ذات د رب خپل ته به کتونکي وي.

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۖ لَّهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۖ وَنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيلًا .[3]

ترجمة : او هغه کسان چې ایمان ئې راوړی دی او کړي ئې دي ښه (عملونه) زر به ننه باسو مونږ دوی په (هغو) جنتونو کې چې بهیږي له لاندې د

[1] سورة الاعراف آية ٤٣
[2] سورة القيامة
[3] سورة النساءآية ٥٧

(مانيو او ونو) د دوی ويالې همېشه وي به دوی په دغو (جنتونو) کې تل (بې انتها او بې انقطاع) وي به دوی ته په دې جنتونو کې ښځې پاکې کړل شوې (له ټولو نا پاکيو څخه) او ننه به باسو مونږ دوی په ګڼو سيورو (په دائمي راحت کې) .

الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ طَيِّبِينَ يَقُولُونَ سَلَامٌ عَلَيْكُمُ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ. [1]

ترجمة : هغه کسان چې قبضوي ارواح د دوی ملائکې په دې حال کې چې پاک دي دغه (متقين له شرکه او معصيته) وايي به دغه (ملائک دوی ته چې د الله ) سلام دې وي پر تاسې باندې ننوزئ جنت ته په سبب د هغو نيکيو چې وئ تاسو چې عمل به مو کاوه (په دنياکې) .

وَالَّذِينَ صَبَرُوا ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَنْفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ أُولَئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ . جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا وَمَنْ صَلَحَ مِنْ آبَائِهِمْ وَأَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ وَالْمَلَائِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِمْ مِنْ كُلِّ بَابٍ . سَلَامٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ . [2]

ترجمة : او هغه کسان چې صبر کوي لپاره د طلب د رضا د رب خپل (په مالي او جاني مصائبو يا د شرعي يا د جهاد په تکاليفو) او قائموي (سم اداء کوي له ټولو حقوقو په ترتيب سره) مونځ او نفقه کوي (لګوي په لاره د الله کې) ځينې له هغه (حلالو اموالو) نه چې ورکړي دي مونږ دوی ته هم په پټه او هم په ښکاره (خفيتاً او ظاهراً) او دفع کوي دوی په نيکي سره بدي دغه کسان موصوف په دغو صفاتو شته دوی ته (ښه) عاقبت د دار (د آخرت چې) جنتونه دي د تل اوسېدلو چې ننوزي به دوی په هغو کې او (ننوزي

---

1 سورةالنحل آية ٣٢
2 سورة الرعدآية ٢٢-٢٤

به پکي بل) اولادې د دوی (اګر که عمل ئې د هغو په درجه نه وي) او فرښتې به ور ننوزي پر دوی (سره له تحائفو او زيري او رضوان) له هرې دروازې (مانيو د دوی ته او ورته به وايي چې) سلامتيا د وي پر تاسې په سبب د صبر کولو ستاسې (په طاعت او مصيبت او له معصيته) نو ښه عاقبت د دار (د آخرت عاقبت د تاسې دی) .

أَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحاتِ فَلَهُمْ جَنَّاتُ الْمَأْوى نُزُلاً بِما كانُوا يَعْمَلُونَ. [1]

ترجمة: هر څه هغه کسان چې ايمان ئې راوړی دی او کړي ئې دي ښه (عملونه) پس شته دوی لره جنتونه د هستوګنې په طريقه د مېلمستيا په سبب د هغو عملونو چې وو دوی چې کول به يې (په د نيا کې) .

وَحُورٌ عِينٌ . كَأَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ . جَزَاء بِمَا كَانُوا يعْملُونَ. [2]

ترجمة : او په جنت کې به حورې وي غټې سترګې داسې به ساتل شوې وي لکه په پوښ کې ملغلرې دا به دوی ته د هغه عملونو جزاء ورکول کيږي چې دوی کول (په دنيا کې) .

فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ أَنِّي لا أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِنْكُمْ مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى بَعْضُكُمْ مِنْ بَعْضٍ فَالَّذِينَ هَاجَرُوا وَأُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَأُوذُوا فِي سَبِيلِي وَقَاتَلُوا وَقُتِلُوا لأُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَلأُدْخِلَنَّهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الأَنْهَارُ ثَوَابًا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَاللَّهُ عِنْدَهُ حُسْنُ الثَّوَابِ. [3]

ترجمة : پس قبولې کړې دوی لره (دا دعاوې) رب د دوی (په دې شان چې) بېشکه زه نه ضائع کوم عمل د هېڅ عمل کوونکي له تاسې نه نارينه وي (دا عمل کونکی) يا ښځه وي (ځکه چې) ځينې ستاسې دي له ځينو نورو (او ماته په مکافات کې

---

[1] سورة السَّجْدَة آية ١٩
[2] سورةالْوَاقِعَة آية ٢٢ـ٢٤
[3] سورة آل عمران آية ١٩٥

تـول سره يـو يـئ) او هغه كسان چې هجرت كړى دى دوى (لـه پـاره د ديـن) او ايـستلى شوي دي دوى لـه كورونـو خپلـو (د الله پـه لاره كې) او ضرر رسولـى شوى دى دوى تـه پـه لاره زمـا كې او جنګونـه ئـې كـړي دي (لـه كفـارو سره) او وژل شوي دي (پـه غزا كې) نـو خـامخـا بـه لـرې كـړم لـه دوى نـه ګـناهونـه د دوى او خـامخـا بـه داخل كـړم دوى پـه جنـتونـو كې چې بـهيـږي لـه لانـدې د(مـانـيـو او ونـو د) هغـو ويـالـې (جزا د نـيـكيـو بـه وركـړو مـونـږ دوى تـه) پـه جزا وركـولـو (نـيـكو) سره لـه نـزده د الله او الله پـه نـزد د ده دى ښه ثـواب (نـېكه جزا).

وَمَنْ يَعْمَلْ مِنْ الصَّالِحَاتِ مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنثَى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَأُوْلَئِكَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَلا يُظْلَمُونَ نَقِيرًا . [1]

تـرجمة: او هر هغه څوک چې عمل وكـړي لـه (ځيـنـو) نـيـكو كـارونـو لـه نـاريـنـه وو او لـه ښځو حـال دا چې دى مـؤمـن وي نـو دغه (نـيـكو كـاران) داخل بـه شي پـه جنت كې او ظلـم بـه ونـشي پـه دوى (پـه انـدازه) د نـقيـر (هم يـعنـي پـر دوى پـه هېڅ شي كې هېڅ ظلـم نـه كيـږي) .

مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنثَى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَجْرَهُمْ بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ. [2]

تـرجمة: هر چا چې وكـړ نـېک (عمل) لـه نـاريـنـه وو څخه يـا لـه ښځو څخه حـال دا چې دى مـؤمـن وي نـو خـامخـا ژونـدون بـه وركـړو هغه تـه ژونـدن پـاكيـزه او خـامخـا جزا بـه وركـړو دوى تـه اجر د دوى پـه ډېـر ښه د هغـو (نـيـكيـو) سره چې وو دوى (پـه دنـيـا كې) چې كـول بـه يـې.

من عَمِلَ سَيِّئَةً فَلا يُجْزَى إِلاّ مِثْلَهَا وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى وَهُوَ

[1] سورة النساء آية ١٢٤
[2] سورة النحل آية ٩٧

مُؤْمِنٌ فَأُوْلَئِكَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ يُرْزَقُونَ فِيهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ. [1]

ترجمة : هرڅوک چې وکړي بد کار پس جزا نه ورکوله کېږي (هغه ته) مګر په قدر د هم هغې بدي او هرڅوک چې کړي نیک کار له نارینه وو وي یا له ښځو وي حال دا چې دی مؤمن وي پس دغه (نیکان مؤمنان) ننه به وزي په جنت کې رزق به ورکول کیږي (دوی ته) په دغه جنت کې بې حسابه .

اِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَنَعِيمٍ . فَاكِهِينَ بِمَا آتَاهُمْ رَبُّهُمْ وَوَقَاهُمْ رَبُّهُمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ . كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ . مُتَّكِئِينَ عَلَى سُرُرٍ مَّصْفُوفَةٍ وَزَوَّجْنَاهُم بِحُورٍ عِينٍ. [2]

ترجمة : بېشکه وېرېدونکي (له الله ځان ساتونکي له معاصیو) په جنتونو کې به وي او په نعمتونو کې به وي مېوې خوړونکي خوشالېدونکي به وي په هغو (شیانو) چې ورکړي دي دوی ته رب د دوی او ساتلي دي دوی رب د دوی له عذاب د دوزخ خورئ او څښئ ښه هضمېدونکي په بدل د هغو (ښو اعمالو) چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیاکې) حال دا چې تکیه کوونکي به ناست وي دوی پر تختونو باندې چې برابر اېښود شوي وي صف صف او په نکاح به ورکړو دوی لره حورې ښې ښائسته غټې سترګې.

وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاعِمَة . لِسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ . فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ . لَّا تَسْمَعُ فِيهَا لَاغِيَةً . فِيهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ . فِيهَا سُرُرٌ مَّرْفُوعَةٌ . وَأَكْوَابٌ مَّوْضُوعَةٌ . وَنَمَارِقُ مَصْفُوفَةٌ . وَزَرَابِيُّ مَبْثُوثَة . [3]

ترجمة : ځینې مخونه به په دغې ورځې کې ښائسته او تازه وي پخپل کوښښ باندې (چې ئې کړی وي په

[1] سورةغافر آية ٤٠
[2] سورة الطور
[3] سورةالغاشية آية ٨-١٦

دنيا کې) راضي خوشحال به وي (په آخرت کې) په جنت لوړ شاندار کې به وي نه به آورې په هغه جنت کې کومه چتې بېکاره خبره په دغه (جنت) کې چينه ده جاري بهېدونکې په دغه جنت کې دي تختونه (د پاره د کېناستلو د جنتيانو) لوړ او عاليشان او جامونه دي کېښودل شوي (په اندازه د څښونکيو خپلو) او بالښتونه دي کېښودل شوي په درجه څنګ په څنګ (جنتيانو ته) او فرشونه دي فاخره غوړول شوي .

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَا أَلَتْنَاهُم مِّنْ عَمَلِهِم مِّن شَيْءٍ كُلُّ امْرِئٍ بِمَا كَسَبَ رَهِينٌ . وَأَمْدَدْنَاهُم بِفَاكِهَةٍ وَلَحْمٍ مِّمَّا يَشْتَهُونَ . يَتَنَازَعُونَ فِيهَا كَأْسًا لَّا لَغْوٌ فِيهَا وَلَا تَأْثِيمٌ . وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ غِلْمَانٌ لَّهُمْ كَأَنَّهُمْ لُؤْلُؤٌ مَّكْنُونٌ. [1]

ترجمة: او هغه کسان چې ايمان ئې راوړی دی او متابعت کړی وي د دوی اولادونو د دوی په ايمان سره نو پيوست به کړو مونږ په دوی پورې اولاد د دوی او کم به نه کړو مونږ دغو (پلرونو) لره له (جزاء د) عملونو د دوی هېڅ شی هر سړی به په هغه عمل چې کړی ئې وي ګرو آخته وي (که نېک وي يا بد) او مدد به وکړو مونږ له دوی سره په ورکولو د مېوو (په هر وقت کې) او دغوښو له هغه څيز چې د دوی زړه ئې غواړي يوله بله به اخلي دوی په دغه (جنت) کې پيالې د شرابو چې نه وي چتې (بيکاره) ويل په هغې کې او نه نسبت کول د ګناه يو بل ته او چاپېر به ګرځي (د پاره د خدمت) پر دوی باندې غلامان د دوی چې داسې به وي لکه په پوښ کې پټې ملغلرې ساتل شوې .

فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَا أُخْفِيَ لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ. [2]

---

[1] سورة الطور آية ٢١-٢٤

[2] **سورةالسجدة آية ١٧**

ترجمة: پس نه دی معلوم هېڅ نفس ته (نه فرښتې او نه نبي ته) هغه شی چې پټ کړل شوي دي دوی ته له یخوالي د سترګو نه د پاره د جزاء د هغه عمل چې وو دوی چې کاوه به یې (پټ) .

الَّذِينَ يَحْمِلُونَ الْعَرْشَ وَمَنْ حَوْلَهُ يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَيُؤْمِنُونَ بِهِ وَيَسْتَغْفِرُونَ لِلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَّحْمَةً وَعِلْمًا فَاغْفِرْ لِلَّذِينَ تَابُوا وَاتَّبَعُوا سَبِيلَكَ وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ . رَبَّنَا وَأَدْخِلْهُمْ جَنَّاتِ عَدْنٍ الَّتِي وَعَدتَّهُم وَمَن صَلَحَ مِنْ آبَائِهِمْ وَأَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ . وَقِهِمُ السَّيِّئَاتِ وَمَن تَقِ السَّيِّئَاتِ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمْتَهُ وَذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ. [1]

ترجمة: هغه کسان (له ملائکو) چې پورته اخلي عرش او هم هغه (فرښتې) چې چار چاپېرې دي د عرش تسبیح وایي سره د حمده ثناء د رب د دوی او ایمان ئې راوړی دی په دغه (الله) او مغفرت غواړي (له الله نه) هغو کسانو ته چې ایمان ئې راوړی دی (نو وایي چې) اې ربه زمونږ رسېدلی ئې ته هر څیز ته له جهته د رحمته بخشش او علمه پس بښنه وکړه هغو کسانو ته چې توبه یې ایستلې ده او متابعت ئې کړی دی د لارې ستا او وساته دوی له عذابه د دوزخ نه (او هم وایي به) اې ربه زمونږ او ننه باسه دوی په جنتونو د همېشه هستوګنې کې هغه چې وعده کړې ده تا له دوی سره او څوک چې نېک شوي وي له پلرونو د دوی او (له) ښځو د دوی او (له) اولادو د دوی بېشکه چې ته هم ته ئې ښه غالب قوي (په انفاذ د احکامو) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوې) او وساته دوی له بدیو څنې او هرڅوک چې وساتې ته له بدیو څخه په دغه ورځ د قیامت کې نو په تحقیق رحمت دې وکړ پرې او دغه (ساتل ستا له عذابه) هم دغه دی بری ډېر لوی.

[1] سورة غافر آية ٧-٩

يُطَافُ عَلَيْهِم بِصِحَافٍ مِّن ذَهَبٍ وَأَكْوَابٍ ۖ وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنفُسُ وَتَلَذُّ الْأَعْيُنُ ۖ وَأَنتُمْ فِيهَا خَالِدُونَ . [1]

ترجمة : ګرځولی کیږي به (د غلمانو له خوا) پر دغو جنتیانو کاسې ګلاسونه له سرو زرو څخه او (طلايي) صراحې ګانې او (وي به دوی ته) په دغه (جنت) کې هغه شیان چې خواهش کوي د هغوی نفسونه (د دوی) او چې خوند اخلي سترګې (د دوی ترې) .

فِيهِنَّ خَيْرَاتٌ حِسَانٌ . فَبِأَيِّ آلاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ . حُورٌ مَقْصُورَاتٌ فِي الْخِيَامِ . فَبِأَيِّ آلاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ . لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلا جَانٌّ . فَبِأَيِّ آلاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ . مُتَّكِئِينَ عَلَى رَفْرَفٍ خُضْرٍ وَعَبْقَرِيٍّ حِسَان . [2]

ترجمة : وي به په دغو (ټولو جنتونو) کې حورې پیمخې نیکې ښائسته پس په کوم یوه نعمت د نعمتونو د رب ستاسې دروغ وایئ (او منکریږئ ترې اې انسانانو او پېریانو بلکه نشئ کېدی) حورې به وي پټې کړل شوې په خیمو کې پس په کوم یوه نعمت د نعمتونو د رب ستاسې دروغ وایئ (او منکریږئ ترې اې انسانانو او پېریانو بلکه نشئ کېدی) چې نه به وي مسه کړي دوی لره نه انسان او نه پیري پخوا له دغو (جنتیانو خاوندانو خپلو) پس په کوم یوه نعمت د نعمتونو د رب ستاسې دروغ وایئ (او منکریږئ ترې اې انسانانو او پېریانو بلکه نشئ کېدی) تکیه کوونکي به وي دوی پر بالښتونو شین رنګو باندې او په فرشونو نفیسو عمده وو ښائسته وو باندې .

## د جنت په اړه نبوي احادیث

حضرت عبد الله بن مسعود فرمایي رسول الله ﷺ

[1] سورةالزخرف آية ٧١
[2] سورةالرحمن آية ٧٠-٧٦

فرمايل : إِنِّي لأَعْلَمُ آخِرَ أَهْلِ النَّارِ خُرُوجًا مِنْهَا وَآخِرَ أَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُولاً الجنّة رَجُلٌ يَخْرُجُ مِنْ النَّارِ حَبْوًا فَيَقُولُ اللَّهُ عز وجلَّ له: اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ، فَيَأْتِيهَا فَيُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهَا مَلأَى فَيَرْجِعُ فَيَقُولُ يَا رَبِّ وَجَدْتُهَا مَلأَى فَيَقُولُ اللَّهُ عز وجلَّ له: اذْهَبْ فَادْخُلْ الْجَنَّةَ، فَيَأْتِيهَا فَيُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهَا مَلأَى فَيَرْجِعُ فَيَقُولُ يَا رَبِّ وَجَدْتُهَا مَلأَى فَيَقُولُ اللَّهُ عز وجلَّ له :اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ فَإِنَّ لَكَ مِثْلَ الدُّنْيَا وَعَشَرَةَ أَمْثَالِهَا أَوْ إِنَّ لَكَ مِثْلَ عَشَرَةِ أَمْثَالِ الدُّنْيَا، فَيَقُولُ أَتَسْخَرُ بي أَوْ تَضْحَكُ بي وَأَنْتَ الْمَلِكُ، قال: فَلَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَحِكَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ فكَانَ يَقُولُ ذَلكَ أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ مَنْزِلَة .[1]

ترجمة : بېشکه زه هغه کس پېژنم چې تر ټولو آخر به له اور نه راوزي او جنت ته به ننوزي يو سړی به وي چې له اور نه به په خاپوړي سره راوزي الله به ورته ووايي څه ورشه جنت ته ننوزه هغه به ورته راشي هغه ته به ډک ښکاره شي بېرته به وګرځي وبه وايي يا ربه هغه خو ډک دی الله به ورته ووايي څه لاړ شه جنت ته ننوزه هغه ته به ډک ښکاره شي بېرته به را وګرځي وبه وايي يا ربه هغه خو ډک دی الله به ورته ووايي څه ورشه جنت ته ننوزه بېشکه ستا لپاره په جنت کې لکه دنيا او لس چنده نور لکه دنيا دومره ځای دی بېشکه تاته په جنت کې ددنيا لس چنده ځای دی به ورته ووايي ته په ما پورې ټوکې کوې ته په ما پورې خاندې او ته بادشاه يې؟ حضرت عبد الله بن مسعود فرمايي ما رسول الله ﷺ وليد چې پدې وخت کې يې داسې خندل چې نواجذ غاښونه يې ښکاره کېدل او بيا يې فرمايل : دا په جنت کې تر ټولو ښکته مرتبه دا ده .

حضرت ابو سعيد الخدري او حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : يُنَادِى مُنَادٍ : إِنَّ لَكُمْ تَصِحُّوا فَلاَ تَسْقَمُوا أَبَدًا ، وَإِنَّ لَكُمْ أَنْ تَحْيَوْا فَلاَ تَمُوتُوا أَبَدًا ، وَإِنَّ لَكُمْ أَنْ تَشِبُّوا فَلاَ تَهْرَمُوا أَبَدًا ، وَإِنَّ لَكُمْ أَنْ تَنْعَمُوا فَلاَ تَبْتَئِسُوا أَبَدًا ، فَذَلِكَ قَوْلُهُ عَزَّ وَجَلَّ : (وَنُودُوا أَنْ

[1] أخرجه أحمد ومُسْلم .

تِلْكُمُ الْجَنَّةُ أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ). [1]

ترجمة : يو اواز كوونكى به اواز وكوي جنتيانو ته به ووايي بېشكه تاسې به جوړ شئ بيا به كله هم بيمار نه شئ او تاسې ته به پدې كې ژوند دركړل شي بيا به تاسې كله هم مړه نه شئ تاسې به پدې جنت كې ځوانان شئ بيا به كله هم زاړه نه شئ تاسې ته به پدې كې نعمتونه دركړل شي بيا به كله هم تنګ او خفه نه شئ او همدا مضمون د الله پدې آيت كې ذكر شوى دى چې الله فرمايي دوى ته به په جنت كې اواز وكول شي چې دا جنت تاسې ته دركړل شو په هغه څه چې تاسې به كول .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : لن يُدخِلَ أحدًا عملُهُ الجنَّةَ (جنت ته هېڅوک هم په خپل عمل نشي ننوتلى) صحابه وو ورته وويل : حتى ته هم نه يا رسول الله ﷺ! رسول الله ﷺ وفرمايل : لا، ولا أنا، إلَّا أن يتغمَّدَنِيَ اللَّهُ بِفَضلٍ ورَحمةٍ، فسدِّدوا وقاربوا، ولا يَتمَنَّيَنَّ أحدُكمُ الموتَ: إمَّا مُحسِنًا فلعلَّهُ أن يزدادَ خَيرًا، وإمَّا مُسيئًا فلعلَّهُ أن يَستَعتِبَ . [2]

ترجمة : حتى زه هم نه مګر دا چې الله مې په خپل فضل او رحمت كې پټ كړي نو تاسې كلک شئ او نېک عملونه وكوئ هېڅوک د د مرګ تمنا نه كوي كه يو انسان نېک وي نو نيكي به يې په ژوند كې زياته شي او كه چېرته بد عمله وي كېداى شي توبه وباسي .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : مَنْ خَافَ أَدْلَجَ، وَمَنْ أَدْلَجَ بَلَغَ الْمَنْزِلَ، أَلاَ إِنَّ سِلْعَةَ اللهِ غَالِيَةٌ، أَلاَ إِنَّ سِلْعَةَ اللهِ

[1] رواه الامام احمد
[2] رواه البخاري

الجَنَّةُ . [1]

ترجمة : هغه څوک چې و ډار شي (چې د شا نه به څه خطر پسې راشي) نو هغه په خپل رفتار کې خپل ټول قوت استعمالوي او په تيزو تللو کې کوشش کوي او څوک چې په خپل سفر کې زيات کوشش وکوي هغه منزل ته رسيږي خبر دار د الله سودا ډيره قيمته ده او د الله سودا جنت ده .

حضرت انس فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **أنا أكثر الناس تبعًا يوم القيامة، وأنا أول من يقرع باب الجنة.** [2]

ترجمة : د قيامت په ورځ به زما ډير تابعداران وي او زه به اول هغه کس وم چې د جنت دروازه به ټکوي .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **من يدخل الجنة ينعم، لا ييأس، لا تبلى ثيابه، ولا يفنى شبابه .** [3]

ترجمة : هغه څوک چې جنت ته ننوزي په هغه باندې به انعام کيږي هغه به نه خفه کيږي د هغه جامې به نه زړيږي د هغه ځواني به نه ختميږي .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إن في الجنة شجرة يستظل الراكب في ظلها مائة سنة واقرؤوا إن شئتم وَظِلٍّ مَمْدُودٍ ولقاب قوس أحدكم من الجنة خير مما طلعت عليه الشمس أو تغرب .** [4]

ترجمة : بېشکه په جنت کې يوه ونه ده يو کس چې

---

1 **سنن الترمذي**
2 **رواه مسلم**
3 **رواه مسلم**
4 **رواه البخاري**

په آس سپور وي ددې ونې په سيوري کې سل کاله سفر کوي که مو خوښه وي پدې اړه د ا آيت تلاوت کړئ الله فرمايي په جنت کې به اوږد سيورى وي او په جنت کې ستاسې د يوې لينديې په اندازه زمکه تر ټولو هغه شيانو غوره ده چې لمر وربانديې خيږي او غورځيږي .

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : إن الله عز وجل يقول لأهل الجنة: يا أهل الجنة. فيقولون: لبيك ربنا وسعديك والخير في يديك. فيقول: هل رضيتم؟ فيقولون: وما لنا لا نرضى يا ربنا وقد أعطيتنا ما لم تعط أحدًا من خلقك؟ فيقول: ألا أعطيكم أفضل من ذلك؟ فيقولون: يا رب! وأي شيء أفضل من ذلك؟ فيقول: أحل عليكم رضواني فلا أسخط عليكم بعده أبدًا .[1]

ترجمة : الله به د جنت خلکو ته اواز وکوي اې د جنت خلکو ! هغوى به ورته ووايي مونږ تاته په اطاعت ولاړ يو ستا د حکم متابعت کوو او خير ستا په لاسونو کې دى الله به ورته ووايي : آيا تاسې رضا شوئ؟ هغوى به ورته ووايي مونږ به ولې نه رضا کيږو اې زمونږ ربه تا مونږ ته هغه څه راکړي دي چې په بندګانو کې د بل چا ته نه دي ورکړي الله به ورته ووايي : زه ددېنه غوره شى درکړم؟ دوى به ورته ووايي : او ددېنه غوره شى به څه شى وي زمونږ ربه! الله به ورته ووايي زه به په تاسې بانديې خپله رضا نازله کړم او ددېنه وروسته به کله هم زه په تاسې بانديې نه په قهر کيږم .

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : إن أهل الجنة ليتراءون أهل الغرف من فوقهم كما تتراءون الكوكب الدري الغائر من الأفق من المشرق أو المغرب لتفاضل ما بينهم .

ترجمة : بېشکه جنتيان به اهل الغرف ته داسې

[1] رواه مسلم

ښکاره کیږي لکه ځلانده ستوری چې په افق کې د مشرق او مغرب نه ښکاره کیږي دا ددې امله چې دا پورته ښکاره کېدونکي جنتیان به تر ښکته نه غوره وي صحابه وو ورته وویل یا رسول الله ﷺ دا ددې امله چې دا به د انبیاوو منزله وي چې بل څوک ورته نشي رسېدلی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: **بلی والذي نفسي بيده، رجال آمنوا بالله وصدقوا المرسلين .** [1]

ترجمة : نه ورته رسېدلی شي زما د قسم په هغه ذات وي چې زما نفس یې په لاس کې دی هغه کسان چې په الله یې ایمان راوړی وي او د مرسلینو تصدیق یې کړی وي .

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **أَوَّلُ زُمْرَةٍ تَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَلَى صُورَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ وَالَّذِينَ عَلَى آثَارِهِمْ كَأَحْسَنِ كَوْكَبٍ دُرِّيٍّ فِي السَّمَاءِ إِضَاءَةً قُلُوبُهُمْ عَلَى قَلْبِ رَجُلٍ وَاحِدٍ لَا تَبَاغُضَ بَيْنَهُمْ وَلَا تَحَاسُدَ لِكُلِّ امْرِئٍ زَوْجَتَانِ مِنْ الْحُورِ الْعِينِ يُرَى مُخُّ سُوقِهِنَّ مِنْ وَرَاءِ الْعَظْمِ وَاللَّحْمِ.**

ترجمة : بېشکه اوله ډله چې جنت ته ننوزي د سپوږمی په شکل به وي چې د بدر په شپه کې (په هغه شپه کې چې سپوږمۍ پکې پوره وي) او بیا د هغې پسې چې کوم خلک وي هغوی به لکه ځلانده ستوري داسې وي په اسمان کې د رڼا له لوري زړونه به یې لکه د یو سړي زړه داسې وي نه به یو له بله سره دښمني کوي او نه به له یو بل سره کینه کوي په دوی کې د هرسړي لپاره داسې دوه بیبیانې دي چې د هغې ماغزه د غوښې او هډوکي د ننه ښکاره کیږي .

حضرت عمران بن حصین فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل **اطلعت في الجنة فرأيت أكثر أهلها الفقراء، واطلعت**

---

[1] **رواه مسلم**

في النار فرأيت أكثر أهلها النساء. [1]

ترجمة : ما په جنت کې وکتل اکثر اهل یې فقیران وو او ما چې اور ته ور وکتل اکثر اهل یې هلته ښځې وې .

حضرت انس بن مالک فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **يخرج من النار من قال: لا إله إلا الله، وكان في قلبه من الخير ما يزن شعيرة، ثم يخرج من النار من قال: لا إله إلا الله، وكان في قلبه ما يزن برة، ثم يخرج من النار من قال: لا إله إلا الله وكان في قلبه من الخير ما يزن الذرة .** [2]

ترجمة : د دوزخ نه به هغه کس را وویستل شي چې **لا اله الا الله** یې ویلي وي او په زړه کې یې دومره خیر وي لکه وربشه بیا به د دوزخ نه هغه را وویستل شي چې **لا اله الا الله** یې ویلي وي او په زړه کې یې دومره خیر وي لکه د غنم دانه او بیا به له دوزخ نه هغه کسان را وویستل شي چې **لا اله الا الله** یې ویلي وي او په زړه کې یې دومره خیر وي لکه د یوې ذرې (دا ټول به جنت ته ننه ایستل شي) .

حضرت عبد الله بن عباس فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **عُرِضَتْ عَلَيَّ الأُمَمُ فَجَعَلَ النَّبِيُّ وَالنَّبِيَّانِ يَمُرُّونَ مَعَهُمْ الرَّهْطُ وَالنَّبِيُّ لَيْسَ مَعَهُ أَحَدٌ حَتَّى رُفِعَ لِي سَوَادٌ عَظِيمٌ قُلْتُ مَا هَذَا؟ أُمَّتِي هَذِهِ؟ قِيلَ بَلْ هَذَا مُوسَى وَقَوْمُهُ، قِيلَ انْظُرْ إِلَى الأُفُقِ فَإِذَا سَوَادٌ يَمْلأُ الأُفُقَ ثُمَّ قِيلَ لِي انْظُرْ هَا هُنَا وَهَا هُنَا فِي آفَاقِ السَّمَاءِ فَإِذَا سَوَادٌ قَدْ مَلأَ الأُفُقَ قِيلَ هَذِهِ أُمَّتُكَ وَيَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ هَؤُلاءِ سَبْعُونَ أَلْفًا بِغَيْرِ حِسَابٍ ....** الحديث . [3]

ترجمة : ماته به (د قیامت په ورځ) امتونه را ښکاره شي داسې نبي او یا نبیان به وي چې یوه

[1] **رواه البخاري**
[2] **رواه البخاري**
[3] **رواه البخاري**

ډله خلک به ورسره وي هغه به یې تابعداري کونکي امتیان وي او داسې نبي به هم وي چې یوازې به را روان وي هیڅوک به ورسره نه وي تردې چې ماته یوه ډله خلک را ښکاره شي زه پوښتنه وکوم چې دا څوک دي؟ دا زما امت دی؟ ماته به وویل شي دا حضرت موسی او د هغه قوم دی بیا به ماته وویل شي چې د اسمان کنارو ته وګوره چې یوه داسې ډله خلک به وي چې ډېر زیات به وي د اسمان کنارې به وربانډې ډکې ښکاره کیږي ماته به وویل شي چې دېخوا ته وګوره دېخوا ته وګوره بیا به ماته وویل شي دا ستا امت دی او له دوی نه به جنت ته اویا زره بې حسابه داخلیږي.

یوه ورځ رسول الله ﷺ صحابه وو ته ویل : **أَتَرْضَوْنَ أَنْ تَكُونُوا رُبُعَ أَهْلِ الْجَنَّةِ؟** (آیا تاسې پدې خوښ یاست چې په جنت کې څلورمه برخه ستاسې څخه وي؟ ) صحابه وو ورته وویل : هو یا رسول الله ﷺ بیا رسول الله ﷺ وویل : **أَتَرْضَوْنَ أَنْ تَكُونُوا ثُلُثَ أَهْلِ الْجَنَّةِ؟** (تاسې پدې خوښ یاست چې په جنت کې دریمه برخه ستاسې څخه وي؟) صحابه وو ورته وویل هو یا رسول الله ﷺ بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : **وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ إِنِّي لأَرْجُو أَنْ تَكُونُوا نِصْفَ أَهْلِ الْجَنَّةِ؛ وَذَلِكَ أَنَّ الْجَنَّةَ لا يَدْخُلُهَا إِلا نَفْسٌ مُسْلِمَةٌ وَمَا أَنْتُمْ فِي أَهْلِ الشِّرْكِ إِلا كَالشَّعْرَةِ الْبَيْضَاءِ فِي جِلْدِ الثَّوْرِ الأَسْوَدِ أَوْ كَالشَّعْرَةِ السَّوْدَاءِ فِي جِلْدِ الثَّوْرِ الأَحْمَرِ .** [1]

ترجمة : زما د په هغه ذات باندې قسم وي چې زما نفس د هغه په لاس کې دی زه ددې امید کوم چې د جنت نیم اهل ستاسې څخه وي څکه جنت ته صرف مسلمانان ننوزي او تاسې په شرک کې داسې یاست لکه د تور حیوان په څرمن کې سپین ویښته او یا لکه د سره حیوان په څرمن کې تور ویښته

[1] **رواه البخاري**

.

رسول الله ﷺ فرمايي : أَهْلُ الْجَنَّةِ عِشْرُونَ وَمِائَةُ صَفٍّ ثَمَانُونَ مِنْهَا مِنْ هَذِهِ الأُمَّةِ وَأَرْبَعُونَ مِنْ سَائِرِ الأُمَمِ .[1]

ترجمة : جنتيان به يو سل او شل صفونه وي اتيا صفه به ددې امت نه وي او څلوېښت به د نورو ټولو امتونو څخه وي .

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : إِنَّ أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ مَنْزِلَةً رَجُلٌ صَرَفَ اللَّهُ وَجْهَهُ عَنْ النَّارِ قِبَلَ الْجَنَّةِ، وَمَثَّلَ لَهُ شَجَرَةً ذَاتَ ظِلٍّ فَقَالَ: أَيْ رَبِّ قَدِّمْنِي إِلَى هَذِهِ الشَّجَرَةِ أَكُونُ فِي ظِلِّهَا.. ثُمَّ يَدْخُلُ بَيْتَهُ فَتَدْخُلُ عَلَيْهِ زَوْجَتَاهُ مِنْ الْحُورِ الْعِينِ، فَتَقُولانِ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَحْيَاكَ لَنَا وَأَحْيَانَا لَكَ»، قَالَ: «فَيَقُولُ: مَا أُعْطِيَ أَحَدٌ مِثْلَ مَا أُعْطِيتُ.[2]

ترجمة : بېشکه په جنت کې تر ټولو نه په مرتبه کې ښکته به هغه سړی وي چې الله د هغه مخ د اور نه د جنت خوا ته واړوي او هلته يوه ونه ورته ښکاره شي دی به ووايي ای ربه ما دې ونې ته ور نېږدې کړه چې ددې په سيورې کې کېنم بيا به الله ده ته اجازه ورکړي دی به يه جنت کې خپل کور ته ننوزي او د حورو نه به يې دوه بيبياني ده ته ور ننوزي ورته به ووايي حمد ثناء ده هغه ذات لره چې ته يې زمونږ لپاره ژوندی کړی يې او مونږ يې ستا لپاره ژوندۍ کړې يو دی به له ځان سره وايي دا څومره نعمتونه چې ماته راکړل شوي دي بل هېچا ته هم نه دي ورکړل شوي .

رسول الله ﷺ فرمايي : خُيِّرت بين أن يدخل نصف أمتي الجنة وبين الشفاعة فاخترت الشفاعة، لأنها أعم وأكثر أترونها للمتقين؟ لا؛ ولكنها للمذنبين

---
1 سنن الترمذي
2 رواه مسلم

المتلوثين الخطائين .[1]

ترجمة : ماته اختيار راکړل شو چې زه خوښ کړم دا چې زما نيم امت د جنت ته ننوزي او که دا چې ماته به د شفاعت حق راکول کيږي ما شفاعت خوښ کړو ځکه دا عام دی او پدې سره زه خپل زيات امتيان جنت ته ننه ايستلی شم تاسې څه فکر کوئ چې زما شفاعت به د متقيانو لپاره وي؟ نه دا به د ګناه کارانو او خطا کارانو لپاره وي .

د حضرت ابي هريره څخه روايت دی هغه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : إِنَّ اللَّهَ خَلَقَ الرَّحْمَةَ يَوْمَ خَلَقَهَا مِائَةَ رَحْمَةٍ فَأَمْسَكَ عِنْدَهُ تِسْعًا وَتِسْعِينَ رَحْمَةً، وَأَرْسَلَ فِي خَلْقِهِ كُلِّهِمْ رَحْمَةً وَاحِدَةً؛ فَلَوْ يَعْلَمُ الْكَافِرُ بِكُلِّ الَّذِي عِنْدَ اللَّهِ مِنْ الرَّحْمَةِ لَمْ يَيْئَسْ مِنْ الْجَنَّةِ، وَلَوْ يَعْلَمُ الْمُؤْمِنُ بِكُلِّ الَّذِي عِنْدَ اللَّهِ مِنْ الْعَذَابِ لَمْ يَأْمَنْ مِنْ النَّارِ .[2]

ترجمة : بېشکه الله رحمت پيدا کړو په هغه ورځ باندې الله سل رحمتونه پيدا کړل بيا يې ۹۹ له ځان سره حصار کړل او يو يې ټولې دنيا ته را ولېږلو که کافر پدې پوه شي چې د الله سره څومره رحمت دی بيا به له جنت نه نا اميده نه شي او که مؤمن په هغه عذاب باندې خبر شي چې د الله سره دی کله به هم د دوزخ څخه په امن کې نه شي .

رسول الله ﷺ فرمايي : إِنَّ اللَّهَ يُدْنِي الْمُؤْمِنَ فَيَضَعُ عَلَيْهِ كَنَفَهُ -أي ستره- وَيَسْتُرُهُ فَيَقُولُ: أَتَعْرِفُ ذَنْبَ كَذَا؟ أَتَعْرِفُ ذَنْبَ كَذَا؟ فَيَقُولُ: نَعَمْ، أَيْ رَبِّ. حَتَّى إِذَا قَرَّرَهُ بِذُنُوبِهِ وَرَأَى فِي نَفْسِهِ أَنَّهُ هَلَكَ؛ قَالَ: سَتَرْتُهَا عَلَيْكَ فِي الدُّنْيَا وَأَنَا أَغْفِرُهَا لَكَ الْيَوْمَ، فَيُعْطَى كِتَابَ حَسَنَاتِهِ .[3]

---

1 **سنن الترمذي**
2 **رواه البخاري**
3 **رواه البخاري**

ترجمة : الله به د قيامت په ورځ په يوه بنده باندې خپله پرده ور خپره کړي او هغه به پټ کړي او بيا به ورته ووايي فلاني ګناه د ياده ده ؟ هغه به ورته ووايي هو ربه ياده مې ده تردې چې په ټولو ګناهونو باندې به ورڅخه اقرار واخلي او دا بنده به له خپل ځان سره ووايي چې دی هلاک شو بيا به الله ورته ووايي چې دا ګناهونه مې درته په دنيا کې پټ کړي وو او اوس يې درته بښم بيا به يې د خپلو نيکيو کتاب په لاس کې ورکړي .

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : يَخْلُصُ الْمُؤْمِنُونَ مِنْ النَّارِ فَيُحْبَسُونَ عَلَى قَنْطَرَةٍ بَيْنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ، فَيُقَصُّ لِبَعْضِهِمْ مِنْ بَعْضٍ مَظَالِمُ كَانَتْ بَيْنَهُمْ فِي الدُّنْيَا، حَتَّى إِذَا هُذِّبُوا وَنُقُّوا أُذِنَ لَهُمْ فِي دُخُولِ الْجَنَّةِ فَوَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لأَحَدُهُمْ أَهْدَى بِمَنْزِلِهِ فِي الْجَنَّةِ مِنْهُ بِمَنْزِلِهِ كَانَ فِي الدُّنْيَا. [1]

ترجمة : مؤمنان به د اور نه را خلاص شي د جنت او دوزخ په مينځ کې به حصار کړل شي ترڅو د يو بل نه د خپلو حقونو بدل واخلي تردې چې دوی به ټول له حقونو خلاص شي او پاک به شي بيا به ورته اجازه وشي چې جنت ته د ننوزي زما د قسم په هغه ذات وي چې د محمد نفس د هغه په لاس کې دی په دوی کې به يو په جنت کې په خپل کور کې په دنيا کې د خپل کور نه ښه بلد وي .

حضرت معاذ بن جبل فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : يَدْخُلُ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ جُرْدًا مُرْدًا مُكَحَّلِينَ أَبْنَاءَ ثَلاثِينَ أَوْ ثَلاثٍ وَثَلاثِينَ سَنَةً . [2]

ترجمة : جنتيان به جنت ته ننوزي پداسې حال کې چې په بدن به يې ويښته نه وي او ږيرې به يې لا نه وي را پورته شوي ديرش او يا دري ديرش کلن

---

1 رواه البخاري
2 سنن الترمذي

به وي .

حضرت صهيب فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل إِذَا دَخَلَ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ قَالَ: يَقُولُ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: تُرِيدُونَ شَيْئًا أَزِيدُكُمْ فَيَقُولُونَ أَلَمْ تُبَيِّضْ وُجُوهَنَا أَلَمْ تُدْخِلْنَا الْجَنَّةَ وَتُنَجِّنَا مِنْ النَّارِ؟»، قَالَ: «فَيَكْشِفُ الْحِجَابَ، فَمَا أُعْطُوا شَيْئًا أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِنْ النَّظَرِ إِلَى رَبِّهِمْ عَزَّ وَجَلَّ وهي الزيادة» ثُمَّ تَلَا هَذِهِ الْآيَةَ: لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ ۖ وَلَا يَرْهَقُ وُجُوهَهُمْ قَتَرٌ وَلَا ذِلَّةٌ ۚ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ.[1]

ترجمة : كله چې جنتيان جنت ته ننوزي الله به ورته ووايي څه شى غواړئ چې درته زيات يې كړم ؟ دوى به ورته ووايي ولې تا زمونږ مخونه سپين كړي نه دي ولې تا مونږ جنت ته نه يو را ننه ايستلي او له اور نه د نجات نه دى راكړى؟ پدې وخت كې به الله د خپل او د بندګانو په مينځ كې حجاب پورته كړي نو جنتيانو ته به تر اوسه پورې د الله د ديدن نه غوره شى نه وي وركړل شوي او همدا په نعمتونو كې زيادت دى بيا يې دا آيت تلاوت كړو چې الله فرمايي هغه كسان چې نيكان دي هغوى لره نيكي ده او زيادت دى او د دوى مخونو ته به نه رسيږي خواري او ذلت او همدا خاوندان د جنت دي دوى به پدې جنت كې همېشه وي .

پدې اړه احاديث ډېر زيات دى زه يې دلته د خپل كتاب د اندازې په نظر كې له نيولو سره بس كوم .

## نكتې

په لاندې ټكو كې د جنت په اړه څو نكتې ستاسې په وړاندې ايږدم .

[1] رواه مسلم

۱. یو عالم فرمایي ما جنت او دوزخ لیدلي دي چا ترې پوښتنه وکوله څنګه د لیدلي دي؟ ده ورته وویل ما د رسول الله ﷺ په سترګو لیدلي دي ځکه رسول الله ﷺ لیدلي او هغه ماته بیان کړي دي دا ماته همداسې یقین راکوي لکه زه یې چې په خپلو سترګو وینم .

۲. د آخرت جنت ددنیا د جنت نه وروسته وي په دنیا کې دا یو ډول جنت دی چې انسان د الله په ذکر او د الله په اطاعت باندې مصروف وي ځکه د زړه خوشحالي له الله سره ده او زړه چې ترڅو د الله سره وي هغه ډېر خوشحال وي لدې خوشحالي سره بیا په دنیا کې هېڅ نعمتونه برابرېدلی نشي .

۳. هغه څوک چې پدې دنیا کې له الله سره نا اشنا وي نو په قبر او آخرت کې به دا نا اشنا والی نور هم زیات وي او هغه څوک چې د الله سره په دنیا کې خوشحال وي هغه به په قبر او آخرت کې تردې هم زیات خوشحال وي.

٤. مونځ داسې عمل دی لکه د الله سره خبرې کول په مانځه کې داخلېدل داسې دي لکه د الله په مجلس کې شریکېدل الله په خپل مجلس کې داخلیدل تر پاکي پورې تړلي دي ترڅو چې ځان پاک نه کړي د مانځه اجازه ورته نشته په همدې ډول الله جنت ته ننوتل هم تړلي تر پاکدامني او پاکي پورې ترڅو یو انسان پاک او نېک نه وي جنت ته نشي تلی.

٥. هغه کسان چې جنتیان وي هغوی هېچرته هم نه ډاریږي اوکله چې د هغوی روح له بدن څخه وزي نو ملک الموت ورته د زیري په ډول وایي **اخرجي إلى مغفرة من الله ورضوان** (را اوزه د الله بښنې او رضا ته) او په آخرت کې به ورته ملائکې زیری ورکوي

ورته به وايي : أَلَّا تَخَافُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَبْشِرُوا بِالْجَنَّةِ الَّتِي كُنتُمْ تُوعَدُونَ (دا چې مه ډارېږئ مه خفه کېږئ د هغه جنت زيرى قبول کړئ چې لتاسې سره يې وعده کېده) .

٦. په يو حديث کې رسول الله ﷺ فرمايي کله چې په تاسې کې څوک مړ شي هغه ته دده هستوګنځى په سحر او ماښام کې ور ښکاره کول کيږي که جنتي وي نو جنت او که دوزخي وي نو دوزخ به ور ښکاره کول کيږي او ورته به ويل کيږي دا ستا هستوګنځى دى او دا ښکاره کول تر هغه وخته پورې وي ترڅو د الله په حکم مړي له قبرونو څخه را پورته کړل شي .[1]

٧. رسول الله ﷺ فرمايي : کله چې ستاسې څه ورونه په أُحد کې شهيدان شول الله د هغوى ارواح د شنو مارغانو په ګېډو کې کېښودل هغوى د جنت نهرونو ته ورځي او د جنت ميوې خورې .[2]

٨. رسول الله ﷺ فرمايي : کله چې مؤمنان له پل صراط نه د جنت لوري ته ور تېر شي نو هلته حصار شي ترڅو په دوى کې چې د چا په يو بل باندې حقونه وي هغه بدلې سره واخلي بيا به زړونه له کينو ، دښمنيو څخه خلاص شي او پداسې حال کې به دوى جنت ته لاړ شي چې په مکمل حال باندې وي ځکه خو الله فرمايي : وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ (مونږ به د دوى له زړونو کينه وباسو) پدې کې د يو مسلمان لپاره لوى درس موجود دى چې ترڅو دده په زړه کې يوه ذره کينه وي دى به جنت ته نشي تلى نو ښه نه ده چې په هغه وخت کې يې الله له زړه څخه وباسي انسان يې اوس ورته له خپل زړه وباسي؟

1 صحيح البخاري
2 صحيح مسلم

۹. جنتیان چې جنت ته ننوزي په یوه ونه به تېریږي چې د هغې په بیخ کې دوه چینې وي له اولې نه به جنتیان څښاک وکوي پدې څښاک سره به د دوی ګېډې صفا شي او هېڅ ډول بیماري او ګند به پکې پاتې نشي او له بلې نه ولامبې بیا به وربانديې تازګي او نعمتونه ښکاره شي بیا به نه خیرن کیږي او نه به بدلیږي .

۱۰. جنتیان به په ډلو ډلو سره جنت ته ننوزي هرڅوک به له خپلو ملګرو سره په ډله کې خوشحال وي او داسې په خندا او خوشحالي به ځي لکه په دنیا کې به چې دوی په کوم نېک کار کې سره را ټولېدل او سره خوشحال به وو .

۱۱. دوی به یو یو جنت ته نه ځي بلکه ډلې ډلې به ځي پدې توګه به یې یو په بل باندې زړه هم تکیه وي او یو د بل سره به خپلې خوشحالیانې شریکوي چې دا د یو انسان په خوشحالیانو کې لا زیادت راولي .

۱۲. په جنتیانو کې به ځینې داسې بختور خلک وي چې بغیر د حساب نه به ور ننوزي ځینې به داسې وي چې حساب به ورسره وشي خو بیا به یې نیکي زیاتې شي او جنت ته به لاړ شي ځینې یې داسې وي چې د دوزخ مستحق به شي خو بیا به په سفارش او شفاعت سره جنت ته لاړ شي او ځینې به یې داسې وي چې یو ځل به اور ته هم لاړ شي بېرته به په شفاعت سره ورڅخه را بهر کړل شي .

۱۳. جنتیان چې کله جنت ته لاړ شي دروازې به بندې وي او رسول الله ﷺ به راشي د هغه لپاره به دروازې خلاصې شي دا بهتري او د شفاعت کبرى فضیلت الله رسول الله ﷺ ته ورکړى دى .

۱٤. د جنت آته دروازې دي چې د بنده لپاره دا

کله په هغه وخت کې خلاصیږي چې ښه اودس وکوي او یا یې اولادونه وفات شي دی وربانديې صبر وکوي او پدې دروازو کې یوه د روژه لرونکو دروازه ده صرف د دوی لپاره خلاصه شي کله چې دوی ننوزي بیرته بنده شي .

۱۵. د جنت په دروازو کې د مانځه ، صدقې ، جهاد دروازې هم دي نو چې کله مونځ کوونکی جنت ته ننوځي شي د مانځه له دروازې به ورته اواز وشي یا عبد الله کله چې ډېره صدقه کوونکی جنت ته راشي نو د صدقې له دروازې به ورته اواز وشي او کله چې مجاهد جنت ته ننوځي راشي نو د جهاد له دروازې به ورته اواز وشي اې عبد الله او د الله په مؤمنانو بندګانو کې به ډېر داسې بختوران هم وي چې د هغوی په مخ د جنت آټه دروازې خلاصې وي چې له کومې نه یې خوښه وي ننوزي به .

۱٦. رسول الله ﷺ په یو حدیث کې د جنت د دروازو په اړه فرمایلي دي چې ددې د دوو پلو په مینځ کې دومره فاصله ده لکه د مکې او هجر (نومي ځای) په مینځ کې او یا لکه د مکې او بصرې په مینځ کې ډېره د کمال خبره دلته داده چې په هغه وخت کې داسې اسباب موجود نه وو لکه اوس خو چې اوس خلکو د نویو اسبابو له مخې تحقیق کړی دی د مکې او د هجر په مینځ کې بعینه هغه فاصله ده کومه چې د مکې او بصرې په مینځ کېده چې ۱۲۷۳ کیلو متره ده.

۱۷. د جنت دروازې به تړل شوې وي هلته به چې خلک ورځي د ننوتلو لپاره به اجازه غواړي چاته چې د جنت دروازه خلاصه شي هغه به ننوزي او دا بیا نه تړل کیږي او هیڅوک بې اجازې هم نشي ور ننوتلی او جهنم چې ځرنګه د عذاب او د سپکاوي ځای دی هلته په ورتلو کې د اجازې ضرورت نشته

بلکه هلته چې هرڅوک ورځي هغه به دې ورتلو ته مجبور کړل شوي وي د هغې دروازې به خلاصې وي چې کله دوزخیان ور ننوزي بیا به بندې شي بیا به کله هم ورته خلاصې نه شي .

۱۸ الله د جنتونو په اړه فرمايي : **جَنَّاتِ عَدْنٍ مُّفَتَّحَةً لَّهُمُ الْأَبْوَابُ (50)** (يعني د هغوی لپاره همېشني جنتونه دي چې دروازې يې د دوی لپاره خلاصې دي) دا آيت ښکاره کوي چې په جنت کې به د امن او سکون څخه ډک ژوند وي هېڅوک به د هېڅ شي څخه نه ډارېږي د قيمتي باغونو دروازې به خلاصې وي هر وخت به دوی کولی شي له خپلو باغونو مزه او لذت واخلي داسې به نه وي لکه د دنيا سيستم چې لږ قيمتي باغ يا ځای وي په هغه به څوکيدار او پهره دار ولاړ وي او ورسره به له هر لوري خطر وي .

۱۹ حضرت سالم بن عبد الله بن عمر په خوب کې وليدل چې دی جنت ته ورشي هلته ورته ټولې دروازې خلاصې وي صرف يوه دروازه وي چې بنده وي ده له چا څخه پوښتنه وکوله چې دا دروازه ولې بنده ده؟ ده ته وويل شول دا د جهاد دروازه ده او تا تر اوسه پورې جهاد کړی نه دی څنګه چې را ويښ شو روان شو آس يې واخيستو .

۲۰ دا امت اګر که په وخت کې تر ټولو ورستی پيدا شوی دی لکن په قيامت کې به اول همدا امت وي چې محشر ته به رسيږي اول به له دوی سره حساب کيږي اول به د دوی په اړه فيصله کيږي او اول به دوی جنت ته ننوزي .

۲۱ مخکې يو حديث تېر شو حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **أَوَّلُ زُمْرَةٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ عَلَى صُورَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ عَلَى أَضْوَى كَوْكَبٍ دُرِّيٍّ فِي السَّمَاءِ ، لِكُلِّ رَجُلٍ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ ثِنْتَانِ ، يُرَى مُخُّ سَاقِهَا مِنْ وَرَاءِ الثِّيَابِ ، وَالَّذِي نَفْسِي**

بِيَدِهِ مَا فِي الْجَنَّةِ أَعْزَبُ .

ترجمة : اوله ډله چې جنت ته ننوزي مخونه به يې لکه سپوږمۍ داسې وي په هغه شپه چې پوره وي بيا هغه کسان چې ورپسې ورځي هغه داسې وي لکه په اسمان کې ډېر ځلاند ستورى د هرسړي لپاره به دوه ښځې وي هغه به داسې وي چې په پنډۍ کې يې ماغزه د جامو د ننه ښکاره کيږي زما د قسم وي په هغه ذات چې زما نفس د هغه په لاس کې دى په جنت کې مجرد کس نشته .

۲۲. د جنت د دروازو په اړه مخکې هم تېر شول چې دا به ډېرې لويې وي د هغې لوى والى په يو بل حديث کې ښه ښکاره کيږي چې جنت ته به اويا زره کسان په يو ځاى پداسې توګه ننوزي چې يو به د بل شا ته نه وي اول او آخر به يې په يو ځاى ننوزي پداسې حال کې چې لاسونه به يې سره نيولي وي .

۲۳ کله چې دوه کسان دواړه د جنت مستحق شي غريب جنتي به تر مالدار غريب نه پنځه سوه کاله وړاندې ور ننوزي په يو حديث کې ورته اربعين خريفاً (څلوېښت د منې موسمونه) ياد کړل شوي دي يعني څلوېښت کاله خو دا فرق به په غربت او مالدارۍ کې وي هغه کس چې په دنيا کې ښه مسلمان وو او ډېر غريب وو دا به پنځه سوه کاله وړاندې له هغه کس نه ننوزي چې په دنيا کې ښه مسلمان او ډېر مالدار وو په همدې توګه به د دوى په مينځ کې فرق وي .

۲٤ جنتيان چې جنت ته ننوزي ښې خبرې به کوي ، نه به يې په ژبه بد الفاظ وي نه به بدې خبرې کوي زړونه به يې پاک وي بدنونه به يې پاک وي هلته په جنت کې به هېڅ بې کاره او چټي خبره نه آوري .

۲۵ رسول الله ﷺ په يو حديث کې فرمايي د جنتيانو اوله ډله چې جنت ته ځي مخونه به يې لکه د سپوږمي داسې وي نه به دوى هلته ناړې تف کوي ، نه به پکې ګندګي کوي ، او نه به دوى هلته پوزې پاکوي د هغوى لوښي او اسباب به ټول د سرو او سپينو زرو وي .

۲٦ جنتيان چې کله جنت ته لاړ شي د دوى په زړونو کې به صفايي وي د هر يو لپاره به دوې بيبيانې وي چې د هغوى ماغزه په غوښه او هډوکي کې د ننه ښکاره کيږي هلته به جنتيان په هيڅ خبره اختلاف نه کوي د ټولو زړونه به داسې وي لکه د يو سړي زړه .

۲۷ د جنتيانو به عطرو او خوشبويي ته هيڅ ضرورت نه وي د هغوى خولې به د ښو عطرو نه ښه بوى کوي او دوى چې د جنت څومره نعمتونه خوري د دوى په ګېډو کې به تريڼه ګندګي نه جوړيږي همدا خوله به يې په ځواب کې راځي .

۲۸ جنتيان چې هرشى استعمالوي صرف د لذت او مزې لپاره کنه هلته به نه څه ډول لوږه وي ، نه به تنده وي او نه به نور کوم شي ته ضرورت وي او دوى ته به داسې نعمتونه ورکول کيږي لکه په دنيا کې چې وو لکن په کامله توګه .

۲۹ ابن جوزي فرمايي : په دنيا کې چې څومره نعمتونه او عذابونه دي دا د آخرت د نعمتونو او عذابونو نمونې دي ترڅو بندګان يې يوه نمونه دلته وګوري او د آخرت لپاره ځان تيار وساتي .

۳۰ حضرت موسى له الله نه پوښتنه وکوله چې په جنت کې تر ټولو ښکته مرتبه به د چا وي؟ ځواب ورته راغلو چې يو کس به وي الله به ورته ووايي

جنت ته ننوزه دی به ووايي څنګه ننوزم خلک ټول خپلو ځايونو ته تللي دي (يعني اوس خو په جنت کې ځای نشته) الله به ورته ووايي ته پدې نه يې خوښ چې تاته د دومره ځای درکړل شي لکه په دنيا کې چې يو بادشاه ته ورکړل شوی وو.

دی به ورته ووايي : بس رضا شوم .

٣١ کله چې جنتيان جنت ته ننوزي په جنت کې به د ښو خوراکونو په واسطه د دوی مېلمستيا وشي کله چې له رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه چې د دوی اول خوراک به څه وي رسول الله ﷺ ورته وويل کبد الحوت (د ماهي ځيګر) بيا د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه چې پدې پسې به بيا څه شی ورکول کيږي؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : د جنت له غوايانو به غوايی ورته حلال کړل شي .

٣٢ الله د جنت د اندازې په اړه فرمايي : **عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ** (پلونوالی يې لکه د اسمانونو او زمکې دومره به وي) چې عرض يې دومره وي نو طول به يې څومره وي؟ نو هغه کس چې په جنت کې د مرتبې په لحاظ تر ټولو ښکته وي هغه ته دومره ساحه په جنت کې ورکوله کيږي لکه دنيا او لس چنده نور چې ورسره وي نو د هغه کس په اړه به څه وي چې هغه په جنت کې د لوړې مرتبې خاوند وي .

٣٣ په جنت کې ډيرې مرتبې دي امام ضحاک فرمايي الله فرمايي : **لَهُمْ دَرَجَاتٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ** (د الله ه سره د دوی لپاره درجې دي) په جنتيانو کې به يو جنتي ته دا ښکاره کيږي چې دده نه ښکته څومره نورې مرتبې دي او دا به ورته نه ښکاره کيږي چې دده د پاسه هم کومه مرتبه او منزله شته ددې لپاره چې دی غمجن نشي او لوړو مرتبو

ته د رسېدلو ارمان یې په زړه باندې پاتې نشي .

۳٤ د بخاري شریف یو حدیث دی هلته رسول الله ﷺ فرمایل : څوک چې په جنت کې د د دومره ځای مالک وي لکه د یوې ډُرې نو دا ځای ورته له ټولې دنیا او د هغه څه نه چې په دنیا کې دي غوره دی .

۳٥ ابن تیمیة فرمایي په جنت کې دا لوړې مرتبې په مصیبتونو تکلیفونو سره انسان ته راسیږي امام ابن رجب فرمایي د شپې مونځ کول په جنت کې د لوړو مرتبو سبب کیږي الله فرمایي : **وَمِنَ اللَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهِ نَافِلَةً لَكَ عَسَىٰ أَنْ يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَحْمُودًا** (او د شپې تهجد کوه دا به ستا لپاره نفل وي ترڅو د الله مقام محمود ته ورسوي) .

۳٦ په یو حدیث کې رسول الله ﷺ فرمایي : په جنت کې سل درجې دي الله مجاهدینو ته تیارې کړي دي او د هرې درجې په مینځ کې تر بلې پورې دومره فرق دی لکه د اسمان او زمکې تر مینځ .

۳۷ د مسند امام احمد بن حنبل په یو حدیث کې دي چې د قرآن کریم حافظ ته به ویل کیږي چې لوله تلاوت کوه او په یوه یوه مرتبه پورته کېږه او کله چې د قرآن کریم آخري آیت ولوستل شي دده مقام به په هغه ځای کې وي .

۳۸ مخکې دا خبره تېره شوه چې رسول الله ﷺ فرمایل : په تاسې کې هېڅوک هم په خپل عمل سره جنت ته نشي ننوتلی جنت ته به ټول خلک د الله په فضل سره ننوزي خو هلته به د عملونو تقسیم ورته د دوی د عملونو په بنیاد کیږي او ددې آیت معنی هم داده چې الله فرمایي : **وَنُودُوا أَنْ تِلْكُمُ**

الْجَنَّةُ أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ (او دوی ته به اواز وکول شي چې دا هغه جنت دی چې تاسې ته ستاسې د عملونو په بدل کې درکړل شوی دی) .

٣٩ په جنت کې تر ټولو لوړه مرتبة الوسيلة نوميږي له رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه چې دا الوسيلة څه شی دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : په جنت کې لوړه مرتبة ده هغې ته صرف يو کس رسيږي زما تمه ده چې هغه به زه وم د هغې نه پورته بله مرتبه نشته دې درجې ته وسيلة ويل کيږي ځکه دا تر ټولو نه عرش ته نيږدې او قريبه ده او ددې امله په ټولو درجو کې مبارکه ، معظمه او د نور او شرافت نه ډکه درجه ده .

٤٠ حضرت عبد الرحمن بن زيد بن اسلم فرمايي په جنت کې چې څرنګه درجې دي داسې په دوزخ کې هم درجې شته خو په جنت کې چې درجه څومره ښه کيږي هغه پورته کيږي او په دوزخ کې چې څومره سختيږي هغه ښکته ځي په جنت کې تر ټولو لوړ کس به تر ټولو نه په ښو نعمتونو کې وي او په دوزخ کې تر ټولو ښکته کس به تر ټولو نه په سخت عذاب کې وي .

## معلوم جنتيان

په دنيا کې ځينې داسې نېک بخت او بختور خلک هم وو چې د هغوی په جنتي کېدو باندې تر قيامت مخکې دليل راغلی دی رښتيا چې بختور وو الله د د هغوی مرتبې لوړې کړي زه يې پدې وړوکي کتاب کې ستاسې لپاره نومونه صرف ددې لپاره مخکې ايږدم چې زما کتاب به ورسره مبارک او بختور شي ځينې هغه کسان په لاندې ډول دي :

## عشرة مبشرة

عشرة مبشرة لس كسان وو چې رسول الله ﷺ په مختلفو رواياتو کې ورته جنت ياد کړى دى غوره صحابه دي د دوى په اړه رسول الله ﷺ فرمايي : **أَبُو بَكْرٍ فِي الْجَنَّةِ ، وَعُمَرُ فِي الْجَنَّةِ ، وَعُثْمَانُ فِي الْجَنَّةِ ، وَعَلِيٌّ فِي الْجَنَّةِ ، وَطَلْحَةُ فِي الْجَنَّةِ ، وَالزُّبَيْرُ فِي الْجَنَّةِ ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ فِي الْجَنَّةِ ، وَسَعْدٌ وَسَعِيدٌ فِي الْجَنَّةِ ، وَأَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ فِي الْجَنَّةِ .**

پدې حديث کې ټول لس کسان ياد کړل شوي دي :

1. أبو بكر الصديق عبد الله بن أبي قحافة القرشي
2. عمر بن الخطاب بن نفيل العدوي القرشي
3. عثمان بن عفان بن أبي العاص الأموي القرشي
4. علي بن أبي طالب بن عبد المطلب الهاشمي القرشي
5. الزبير بن العوام بن خويلد الأسدي القرشي
6. طلحة بن عبيد الله بن عثمان التيمي القرشي
7. عبد الرحمن بن عوف بن عبد عوف الزهري القرشي
8. سعيد بن أبي وقاص بن وهيب الزهري القرشي
9. أبوعبيدة بن الجراح عامر بن عبدالله بن الجراح القرشي
10. سعيد بن زيد بن عمرو العدوي القرشي

# حضرت جعفر بن ابي طالب

د حضرت رسول الله ﷺ د تره زوی وو دده په اړه ډېر معلومات او په غزوة موتة کې دده د شهادت واقعه او د اسلام په شروع کې دده قرباني حبشې ته هجرت د نجاشي بادشاه په وړاندې د حق وينا او نورې ډېرې خبرې زمونږ (د اسلامي تاريخ له پانو څخه نهمه برخه) کې تير شوي دي دی په ډېر غيرت او ميړانه سره شهيد شو د نومړي کتاب څخه صرف دده د شهادت واقعه تاسې ته دريادوم د هجرت په آتم کال رسول الله ﷺ حضرت حارث بن عمير الازدي ملک بصرې ته شام ته د خپل استازي په توګه ور ولېږلو او خط يې ورکړو چې په هغه کې يې دی اسلام ته را غوښتلی وو هغه په ډېر کبر سره د رسول الله ﷺ استازی شهيد کړو او د استازي وژل په اوس وخت کې هم بد عمل دی او په هغه وخت کې هم ډېر د شرم نه ډک جرم ګڼل کېدو رسول الله ﷺ ته چې دا خبر را ورسېدو نو زيات غصه شو او خلکو ته يې اعلان وکولو چې را ټول شي د روميانو سره جنګ ته تلل دي نو ۳۰۰۰ کسان جنګ ته را ټول شول اګست/سپتمبر 629 م – جمادی الأولی د هجرت آتم کال وو رسول الله ﷺ د دوی په سر باندې زيد بن حارثه امير کړو او بيا يې ورته وويل که چېرته دا شهيد شو بيا به حضرت جعفر بن ابي طالب ستاسې امير وي او که هغه شهيد شو بيا به حضرت عبد الله بن رواحة ستاسې امير وي .

د جُمعې ورځ وه چې دوی روان شول د مجاهدينو خپلوان ورسره را وتلي وو ټولو ورته دعا ګانې کولې چې الله مو په خير فاتحين او صابرين خپلو کورونو ته را ورسوه .

دوی لاړل د شام یو کلي معان ته ورسېدل دوی ته خبر راغلو چې رومیان جنګ ته په ډېر لوی تعداد کې راوتلي دي چې یو لک کسان رومیان دي او یو لک کسان ورسره نور د قبائلو نه را ټول شوي دي صحابه کېناستل مشوره یې کوله چې څه وکوو؟ مونږ خو دا فکر نه کاوه چې زمونږ د ۳۰۰۰ کسانو مجاهدینو مقابله به د دوو لکو کسانو سره کیږي ځینو پکې ویل چې رسول الله ﷺ ته به خط ولېږو او ورته به ووایو چې زمونږ دشمن خو دوه لکه کسان دي یا خو به په مونږ پسې نور کسان راولېږي او یا خو به مونږ ته څه امر وکوي په هغه امر به عمل وکوو چې هرڅه وو .

حضرت عبد الله بن رواحة پاڅېدو خبرې یې شروع کړې او ویې ویل : ای خلکو تاسې ددې لپاره راوتلي یاست چې که الله مو شهادت نصیب کړي والله مونږ دخلکو سره په عدد باندې جنګ نه کوو مونږ د خلکو سره صرف پدې مبارک دین جنګ کوو چې الله مونږ ته وربانده عزت راکړی دی راځي چې ور وړاندې شو الله به په دوه ښو شیانو کې یو مونږ ته راکوي یا شهادت او یا کامیابي خلکو وویل والله ابن رواحة رښتیا وویل او ددې خبرې سره ټول په یوه جذبه ور وړاندې شول چې بلقاء سیمې ته ورسېدل د هرقل فوځونه څه رومیان او څه عرب هم نېږدې کلي ته چې مشارف یې ورته ویل را ورسېدل مسلمانان پدې وخت کې د موتة په نوم کلي ته وړاندې شول په اوس وخت کې ورته کرک وایي مسلمانانو خپل فوځ تیار کړو په میمنه (د فوځ په ښي طرف) باندې یې قطبة بن قتادة مقرر کړو په میسره ( د فوځ په چپ طرف) یې عبایة بن ملک یو انصاري مجاهد مقرر کړو صفونه سره وړاندې شول او سخت جنګ شروع شو چې صرف د زخمیانو فریاد د تورو او د مسلمانانو د تکبیر اوازونه پورته کېدل د زمکې نه تور ګرد پورته شو فوځونه ډیر په سخته سره مخامخ شول

چې د مسلمانانو لمړی امیر حضرت زید بن حارثه د شهادت لوړ مقام ته ورسېدو حضرت جعفر را ټوپ کړل او بیرغ یې پورته کړو د مسلمانانو فوځیانو په مخه کې وو جنګ ډېر سخت وو ښی لاس یې چا ووهلو ترې پرې ئې کړو ده بیرغ په چپ لاس کې ونیولو او هغه یې زمکې ته پرې نه ښودو چپ لاس یې ترې ووهلو د پاتې بدن او سر په واسطه یې د اسلام بیرغ پورته کړو او زمکې ته یې پرې نه ښودو تردې چې شهید شو پدې وخت کې یې عمر ۳۳ کاله وو عبد الله بن عمر فرمایي په غزوة مؤتة کې زه له دوی سره وم کله چې جنګ پای ته ورسېدو نو جعفر بن ابي طالب ورک وو مونږ پسې ګرځېدو چې پیدا مو کړو په بدن مبارک یې څه د پاسه (۹۰) زخمونه وو د توري نیزې او داسې نور رسول الله ﷺ یې چې په شهادت خبر شو ډېر زیات وربانديې خفه شو کور ته یې ورغلو د جعفر ماشومان یې را ټول کړل هغوی یې په مینه ځان ته نیږدې کړل او ښکل یې کړل بیا یې د دوی او د ددوی د پلار په حق کې د خیر دعا وکوله دی مبارک هماغلته د شهادت په ځای کې خاورو ته و سپارل شو اوس یې هم په قبر باندې ښکلی مزار جوړ کړی دی په کرک نومي ځای کې د مزار په نوم ښار ګوټي کي دی په اردن کې د عمان ښار په جنوب کې په ۱٤۰ کېلو متری کې واقع دی .

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : رَأَيْتُ جَعْفَرَ بْنَ أَبِي طَالِبٍ مَلَكًا يَطِيرُ مَعَ الْمَلائِكَةِ بِجَنَاحَيْنِ .[1]

ترجمة : ما جعفر بن ابي طالب د فرښتې په شکل کې ولیدو د ملائکو سره آلوتلو .

[1] المستدرک

# حضرت حمزة

سید الشهداء حضرت حمزة بن عبد المطلب د رسول الله ﷺ مبارک تره وو په پوره میړانه او غیرت سره یې په سختو حالتونو کې د رسول الله ﷺ مرسته کړې وه پوره تفصیل ، قصه او د ژوند حالات یې مخکې تېر شوي دي په اُحد کې الله ورته شهادت نصیب کړو حضرت ابن عباس فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **دَخَلْتُ الْجَنَّةَ الْبَارِحَةَ فَنَظَرْتُ فِيهَا فَإِذَا جَعْفَرٌ يَطِيرُ مَعَ الْمَلائِكَةِ ، وَإِذَا حَمْزَةُ مُتَّكِئٌ عَلَى سَرِيرٍ .**[1]

ترجمة : تېره شپه زه جنت ته ننوتلم پکې ومې کتل ومې لیدل چې جعفر له ملائکو سره آلوتلو او حمزة په تخت باندې ناست وو تکیه یې کړې وه .

حضرت عبد الله بن محمد بن عقیل فرمایي ما له حضرت جابر بن عبد الله څخه واورېدل چې هغه فرمایل :

**فَقَدَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ يَوْمَ أُحُدٍ حَمْزَةَ حِينَ فَاءَ النَّاسُ مِنَ الْقِتَالِ ، قَالَ : فَقَالَ رَجُلٌ : رَأَيْتُهُ عِنْدَ تِلْكِ الشَّجَرَةِ ، وَهُوَ يَقُولُ : أَنَا أَسَدُ اللَّهِ ، وَأَسَدُ رَسُولِهِ ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَبْرَأُ إِلَيْكَ مِمَّا جَاءَ بِهِ هَؤُلاءِ لأَبِي سُفْيَانَ وَأَصْحَابِهِ ، وَأَعْتَذِرُ إِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ هَؤُلاءِ مِنِ انْهِزَامِهِمْ ، فَسَارِ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ نَحْوَهُ ، فَلَمَّا رَأَى جَبْهَتَهُ بَكَى ، وَلَمَّا رَأَى مَا مُثِّلَ بِهِ شَهِقَ ، ثُمَّ قَالَ : أَلا كُفِّنَ ؟ فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الأَنْصَارِ فَرَمَى بِثَوْبٍ ، قَالَ جَابِرٌ : فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: سَيِّدُ الشُّهَدَاءِ عِنْدَ اللَّهِ تَعَالَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَمْزَةُ .**[2]

ترجمة : د اُحد په ورځ چې کله جنګ ختم شو له رسول الله ﷺ څخه حضرت حمزة ورک وو یو کس وویل ما هغه ولیدو د هغه ونې سره وو او ویل یې زه د الله او د هغه د رسول زمری یم او ویل یې اې

---

[1] المستدرک

[2] رواه الحاکم في المستدرک

الله زه بيزاره يم تاته له هغه څه نه چې دې خلکو ابو سفيان او د هغه ملګرو راوړي دي او زه تاته عذر وړاندې کوم له هغه څه نه چې دې خلکو وکول له شکست نه ... رسول الله ﷺ هغه لوري ته ورغلو چې هغه کس ورته ياد کړى وو کله يې چې د هغه مبارک په تندي باندې سترګې ولګېدلې په ژړا شو کله يې چې هغه څه وليدل چې دده د شکل مبارک سره شوي وو (پوزه او غوږونه ترينه پرې کړل شوي وو) نو بد اثر يې پرې وکولو بيا يې وويل : دا په کفن نه شو؟ يو کس له انصارو څخه پاڅېدو خپله جامه يې ور واچوله حضرت جابر بن عبد الله فرمايي بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت په ورځ به د شهيدانو سردار د الله په وړاندې حضرت حمزة وي .

## حضرت عبد الله بن سلام

حضرت عبد الله بن سلام تر اسلام وړاندې يهودي وو د بني قينقاع له يهودو څخه وو حضرت انس فرمايي دى رسول الله ﷺ ته راغلو ورته ويل يې : زه درڅخه د څو خبرو پوښتنه کوم د هغه ځواب صرف نبي ورکولى شي د قيامت اوله نښه څه ده؟ جنتيان به اول په جنت کې څه خوري؟ ماشوم کله پلار ته او کله مور ته ولې په شکل کې ورته کيږي؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : لږ وړاندې جبريل ددې خبرو خبر ماته راکړى دى د قيامت اوله نښه يو اور دى چې له مشرق نه به را پورته شي خلک به مغرب خوا ته وشړي اول چې جنتيان په جنت کې څه شى خوري هغه به د ماهي د جيګر سره زيادتي برخه وي او د ماشوم د شکل خبره داسې ده چې کله د سړي اوبه زر ورسيږي نو د ماشوم شکل هغه ته ورشي او که د مور اوبه زر ورسيږي نو د ماشوم شکل هغې ته لاړ شي .

ددې خبرو د آورېدو سره حضرت عبد الله بن سلام وويل : زه ددې ګواهي ورکوم چې ته د الله رسول يې او په اسلام مشرف شو .

هوښيار او عالم سړى وو علمي بحر وو تر اسلام وړاندې يې هم په يهودو کې د رهبر حيثيت درلود او کله چې مسلمان شو رسول الله ﷺ ورسره ډېره زياته مينه کوله او دده هم ورسره ډېره زياته مينه وه حضرت عبد الله بن عباس فرمايي دا آيت دده په اړه نازل شوى دى **لَيْسُوا سَوَاءً مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ أُمَّةٌ قَائِمَةٌ** (دوى ټول يو شان نه دي له اهل کتابو څني داسې امت هم شته چې قائم وي ) [1]

حضرت زيد بن عميرة فرمايي : **أَنَّ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ لَمَّا حَضَرَتْهُ الْوَفَاةُ ، قَالُوا : يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَوْصِنَا ، قَالَ :أَجْلِسُونِي ، ثُمَّ قَالَ : إِنَّ الْعَمَلَ وَالإِيمَانَ مَظَانَّهُمَا مَنِ الْتَمَسَهُمَا وَجَدَهُمَا ، وَالْعِلْمُ وَالإِيمَانُ مَكَانَهُمَا مَنِ الْتَمَسَهُمَا وَجَدَهُمَا ، فَالْتَمِسُوا الْعِلْمَ عِنْدَ أَرْبَعَةٍ : عِنْدَ عُوَيْمِرٍ أَبِي الدَّرْدَاءِ ، وَعِنْدَ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ ، وَعِنْدَ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ ، وَعِنْدَ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلاَمٍ الَّذِي كَانَ يَهُودِيًّا فَأَسْلَمَ ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ ، يَقُولُ : إِنَّهُ عَاشِرُ عَشْرَةٍ فِي الْجَنَّةِ** [2] .

ترجمة : کله چېد حضرت معاذ بن جبل د وفات وخت وشو حاضرينو ورته وويل اې ابا عبدالرحمن مونږ ته نصحيت وکوه هغه مبارک وويل : ما کينوئ بيا يې وويل : بېشکه د عمل او د ايمان ځايونه دي چا چې لټون وکولو پيدا به يې کړي د علم او ايمان ځايونه دي چا چې يې طلب وکولو پيدا به يې کړي علم د څلورو کسانو سره وغواړئ د حضرت عومير ابي الدرداء ، حضرت سلمان الفارسي، عبد الله بن مسعود او حضرت عبد الله بن سلام سره هغه چې په اول کې يهودي وو بيا يې

[1] سورة آل عمران
[2] صحيح ابن حبان

اسلام قبول کړو ما له رسول الله ﷺ څخه آوریدلي دي چې هغه ﷺ فرمایل : دا په جنت کې د لسو کسانو لسم دی .

حضرت معاذ بن جبل فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلاَّمٍ عَاشِرُ عَشَرَةٍ فِي الْجَنَّةِ .** [1]

ترجمة : حضرت عبد الله بن سلام په جنت کې د لسو کسانو لسم دی (په جنت کې له لسو کسانو څخه یو دی) .

## حضرت زید بن حارثه

د حضرت ابن بریدة څخه روایت دی هغه له خپل پلار نه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : **دَخَلْتُ الْبَارِحَةَ الْجَنَّةَ فَإِذَا أَنَا بِجَارِيَةٍ ، فَقُلْتُ : لِمَنْ أَنْتِ يَا جَارِيَةُ ؟ قَالَتْ : لِزَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ، فَبَشَّرَهُ بِهَا حِينَ أَصْبَحَ .** [2]

ترجمة : د شپې زه جنت ته ننوتلم هلته مې یوه جاریه ولیده پوښتنه مې ترې وکوله اې جاریې ته د چا یې؟ هغې راته وویل زه د زید بن حارثه یم کله چې صباء شو نو هغه ته یې پدې باندې زیری ورکړو .

## د غزوة مؤتة دری قائدین

د غزوة مؤتة قصه مخکې هم تېره شوه هغه له رومیانو سره د صحابه وو د لښکر مخامخ کېدل وو ډېره سخته جګړه وه تفصیلي قصه یې زمونږ (د اسلامي تاریخ له پانو څخه) سلسله کې تېره شویده په هغې غزوة کې دریو قائدینو چې د

---

1 **صحیح مسند الشامین**
2 **الاحاد و المثاني**

صحابه وو د لښکر مشري يې كوله ډېر په ميړانه سره جنګ وکولو او په ميړانه سره د شهادت لوړ مقام ته ورسېدل د هغوى لپاره هم رسول الله ﷺ د جنت زيرى وركړى دى هغوى چې كله د غزوة په ځاى كې په شهادت ورسېدل رسول الله ﷺ ته يې د معجزې په ډول خبر په مدينه منوره كې وركړل شو هغه ﷺ چې د هغوى د شهادت خبره صحابه وو ته كوله ويې فرمايل : أَخَذَ الرَّايَةَ زَيْدُ بن حَارِثَةَ، فَقَاتَلَ بِهَا حَتَّى قُتِلَ شَهِيدًا، ثُمَّ أَخَذَهَا جَعْفَرٌ، فَقَاتَلَ بِهَا حَتَّى قُتِلَ شَهِيدًا". ثُمَّ صَمَتَ النَّبِيُّ ﷺ، حَتَّى تَغَيَّرَتْ وُجُوهُ الأَنْصَارِ، وَظَنُّوا أَنَّهُ كَانَ فِي عَبْدِ اللَّهِ بن رَوَاحَةَ بَعْضَ مَا يَكْرَهُونَ، قَالَ:"ثُمَّ أَخَذَهَا عَبْدُ اللَّهِ بن رَوَاحَةَ، فَقَاتَلَ بِهَا حَتَّى قُتِلَ شَهِيدًا"، ثُمَّ قَالَ:"لَقَدْ رُفِعُوا لِي فِي الْجَنَّةِ فِيمَا يَرَى النَّائِمَ عَلَى سُرُرٍ مِنْ ذَهَبٍ، فَرَأَيْتُ فِي سَرِيرِ عَبْدِ اللَّهِ بن رَوَاحَةَ ازْوِرَارًا عَنْ سَرِيرَيْ صَاحِبَيْهِ، فَقُلْتُ: بِمَ هَذَا؟ فَقِيلَ لِي: مَضَيَا، وَتَرَدَّدَ عَبْدُ اللَّهِ بن رَوَاحَةَ بَعْضَ التَّرَدُّدِ، وَمَضَى". [1]

ترجمة : په اول كې د مسلمانانو بيرغ حضرت زيد بن حارثه واخيست هغه جنګ وکولو تردې چې شهيد شو بيا هغه بيرغ جعفر واخيستو تردې چې شهيد شو بيا رسول الله ﷺ چپ شو د انصارو د مخونو رنګونه متغير شول دوى ګمان وکولو چې رسول الله ﷺ چپ شو په حضرت عبد الله بن رواحة كې به داسې څه وي چې د دوى نه خوښيږي بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : بيا بيرغ حضرت عبد الله بن رواحة واخيستو هغه جنګ وکولو تردې چې هغه هم شهيد شو بيا يې وويل : دوى زما د پاره په جنت كې پورته را ښكاره شول لكه انسان چې خوب ويني د سرو زرو په تختونو باندې وو ما وليدل چې د حضرت عبد الله بن رواحة په تخت كې يو څه كوږ والى وو د نورو دوو ملګرو څخه ما پوښتنه وكوله دا ولې دى؟ ماته وويل شول چې هغوى په مخه لاړل او حضرت عبد الله بن رواحة يو څه تردد

[1] المعجم الكبير للطبراني

وکولو بیا لاړو .

## یو تور سړی

دا بختور چې لا یې رسول الله ﷺ ته او مسلمانانو ته خپل نوم هم ور ونه ښودو الله ورته لوړ بخت ورکړو په یوه غزوة کې په شهادت ورسېدو حضرت انس فرمایي : **أَنَّ رَجُلا أَسْوَدَ أَتَى النَّبِيَّ ﷺ، فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللَّهِ ، إِنِّي رَجُلٌ أَسْوَدُ ، مُنْتِنُ الرِّيحِ ، قَبِيحُ الْوَجْهِ ، لاَ مَالَ لِي ، فَإِنْ أَنَا قَاتَلْتُ هَؤُلاءِ حَتَّى أُقْتَلَ ، فَأَيْنَ أَنَا ؟ قَالَ : فِي الْجَنَّةِ ، فَقَاتَلَ حَتَّى قُتِلَ ، فَأَتَاهُ النَّبِيُّ ﷺ فَقَالَ : قَدْ بَيَّضَ اللَّهُ وَجْهَكَ ، وَطَيَّبَ رِيحَكَ ، وَأَكْثَرَ مَالَكَ ، وَقَالَ لِهَذَا أَوْ لِغَيْرِهِ : لَقَدْ رَأَيْتُ زَوْجَتَهُ مِنَ الْحُورِ الْعِينِ ، نَازَعَتْهُ جُبَّةً لَهُ مِنْ صُوفٍ ، تَدْخُلُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ جُبَّتِهِ** .[1]

ترجمة : یو تورکس راغلو رسول الله ﷺ ته یې وویل یا رسول الله ﷺ زه یو تور سړی یم بد بوی مې دی بد مخ مې دی (بد رنګ یم) مال هم نلرم که چېرته زه جنګ وکوم تردې چې ووژل شم زه به چېرته وم؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : په جنت کې هغه کس ددې خبرې سره په جنګ ور شریک شو تردې چې ووژل شو د شهادت نه وروسته یې رسول الله ﷺ ورته راغلو ورته یې وویل : الله ستا مخ سپین کړو ، ستا بوی یې ښه کړو ، ستا مال یې زیات کړو او دده په حق کې او که د بل چا په حق کې یې دا هم وویل چې ما دده له حورو نه دده ښځه ولیده چې دده د وړیو له چپنې سره یې چیړ کاوه دده د چپنې او دده د بدن په مینځ کې یې ځان ورننه ایستل غوښتل .

## حضرت عمرو بن الجموح

[1] المستدرک

واقعه او قصه يې د احد د غزا په تفصيل کې زمونږ (د اسلامي تاريخ له پانړو څخه) کې تېره شوېده دا مبارک په پښه باندې ګوډ وو څلور زامن يې وو چې د رسول الله ﷺ رښتيني فوځيان وو او په هر ميدان کې به د رسول الله ﷺ سره حاضر وو کله چې د احد د غزا اواز وشو او رسول الله ﷺ د احد خوا ته روان شو ده ته يې زامنو وويل بېشکه الله ته معاف کړی يې ته يې معذور ګڼلی يې که ته په کور کې ناست وی مونږ بس وو چې د رسول الله ﷺ سره لاړ شو هسې هم الله په تا باندې جهاد نه دی فرض کړی ده چې دا خبرې واورېدې رسول الله ﷺ ته راغلو ورته يې وويل : يا رسول الله ﷺ دا زما زامن ما لدې منع کوي چې زه لتا سره لاړ شم والله زه شهادت غواړم او ددې ګوډې پښې سره جنت ته لاړ شم رسول الله ﷺ ورته وويل : **أَمَّا أَنْتَ فَقَدْ وَضَعَ اللَّهُ عَنْكَ الْجِهَادَ** (الله لتا څخه د جهاد حکم وضع کړی دی يعني په تا يې نه دی فرض کړی ته د خپل ګوډ والي له امله معذور يې) بيا يې زامنو ته وويل : تاسې ته څه تکليف دی که دا پرېږدئ کېدای شي الله ورته شهادت ورکړي زامنو هم ورته وويل که ته وتل غواړې نو راځه لاړ شه د احد ميدان ته صرف د شهادت په اميد لاړو په جنګ کې يې لکه د جوړ سړي داسې برخه واخيسته او الله ورته شهادت ورکړو .

د حضرت ابي قتادة نه روايت دی هغه فرمايي : **أَتَى عَمْرُو بْنُ الْجَمُوحِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ ﷺ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرَأَيْتَ إِنْ قَاتَلْتُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ حَتَّى أُقْتَلَ أَمْشِي بِرِجْلِي هَذِهِ صَحِيحَةً فِي الْجَنَّةِ؟ وَكَانَتْ رِجْلُهُ عَرْجَاءَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: نَعَمْ، فَقُتِلُوا يَوْمَ أُحُدٍ هُوَ وَابْنُ أَخِيهِ، وَمَوْلًى لَهُمْ، فَمَرَّ عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ، فَقَالَ: كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْكَ تَمْشِي بِرِجْلِكَ هَذِهِ صَحِيحَةً فِي**

الْجَنَّةِ، فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ بِهِمَا وَبِمَوْلاهُمَا فَجُعِلُوا فِى قَبْرٍ وَاحِدٍ . [1]

ترجمة : حضرت عمرو بن الجموح رسول الله ﷺ ته راغلو ورته یې وویل یا رسول الله ﷺ ستا څه نظر دی که زه د الله په لاره کې جهاد وکوم تردې چې ووژل شم او په جنت کې به زه ددې پښې سره لاړ شم چې دا جوړه وي؟ او پښه یې ګوډه وه رسول الله ﷺ ورته وویل : هو د اُحد په ورځ یو دی او یو دده وراره او یو ددوی ازاد کړل شوی غلام شهیدان شول رسول الله ﷺ یې په خوا کې تېرېدو ویې فرمایل : لکه زه چې همدا اوس ده ته ګورم پدې پښه پداسې حالت کې چې جوړه وي په جنت کې ګرځي رسول الله ﷺ امر وکولو دی او هغه د دوی ازاد غلام یې په یوه قبر کې دفن کړل .

حضرت جابر فرمایي : جَاءَ عَمْرُو بْنُ الْجَمُوحِ إِلَى رَسُولِ اللهِ ﷺ يَوْمَ أُحُدٍ ، فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ ، مَنْ قُتِلَ الْيَوْمَ دَخَلَ الْجَنَّةَ ؟ قَالَ : نَعَمْ. ، قَالَ : فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ ، لاَ أَرْجِعُ إِلَى أَهْلِي حَتَّى أَدْخُلَ الْجَنَّةَ ، فَقَالَ لَهُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ : يَا عَمْرُو ، لاَ تَأَلَّ عَلَى اللهِ ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ : مَهْلاً يَا عُمَرُ ، فَإِنَّ مِنْهُمْ مَنْ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللهِ لأَبَرَّهُ : مِنْهُمْ عَمْرُو بْنُ الْجَمُوحِ ، يَخُوضُ فِي الْجَنَّةِ بِعَرْجَتِهِ . [2]

ترجمة : حضرت عمرو بن الجموح رسول الله ﷺ ته د احد په ورځ راغلو ورته یې وویل : یا رسول الله ﷺ څوک چې نن شهیدان شي هغه به جنت ته ځي؟ رسول الله ﷺ ورته وویل : هو ... ده وویل : زما د په هغه ذات قسم وي چې زما نفس یې په لاس کې دی زه تر هغه وخته پورې خپل کور ته نه ور ګرځم ترڅو جنت ته داخل نه شم حضرت عمر ورته

[1] غاية المقصد
[2] صحيح ابن حبان

وويل اې عمرو په الله باندې د كوم شي الزام مه كوه رسول الله ﷺ ورته وويل : صبر وكوه عمره بېشكه له دې خلكو نه ځينې داسې دي كه په الله باندې قسم وكوي الله به يې په خپل قسم كې برې كړي يو د هغوى نه عمر بن الجموح دى په جنت كې د خپلې ګوډې پښې سره ننوزي .

## عكاشة بن محصن الأسدي

ددې بختور صحابي واقعه د احاديثو په كتابونو كې ډېره مشهوره ده هغه شخصيت دى كله چې رسول الله ﷺ خبره كوله چې زما د امت نه به اويا زره كسان جنت ته بغير د حساب نه داخليږي حضرت عكاشه ورته وويل يا رسول الله ﷺ ماته دعاء وكوه چې زه هم له دوى نه شم رسول الله ﷺ ورته وويل : ته له دوى څخه يې .

## حضرت زيد بن عمرو بن نفيل

دا هغه كس وو چې تر رسول الله ﷺ مخكې په مكه مكرمه كې د جاهليت په وخت كې پيدا شوى وو او د جاهليت په وخت كې به يې خلك د الله وحدانيت ته ور وغوښتل حضرت عائشه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : دَخَلْتُ الْجَنَّة فَرأيتُ لِزَيدٍ بنِ عِمرو بنِ نُفَيلٍ دَرجتَينِ .[1]

ترجمة : زه جنت ته ننوتلم د زيد بن عمرو بن نفيل لپاره مې دوې درجې ولیدې .

## الغميصاء (د حضرت انس بن مالك مور)

[1] اخرجه ابن عساكر

دا مبارکه بي بي وه خپل زوی حضرت انس يې په ماشومتوب کې د رسول الله ﷺ خدمت ته وقف کړی وو

حضرت انس بن مالک فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **دَخَلْتُ الْجَنَّةَ فَسَمِعْتُ خَشْخَشَةً بَيْنَ يَدَيَّ فَإِذَا هِيَ الْغُمَيْصَاءُ بِنْتُ مِلْحَانَ أُمُّ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ .** [1]

ترجمة : زه جنت ته ننوتلم په خپله مخه کې مې د کومې زنانه د زېوراتو اواز واورېدو چې ومې ليده هغه حضرت الغميصاء بنت ملحان د انس بن مالک مور وه .

په بل حديث کې حضرت انس بن مالک فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **دَخَلْتُ الْجَنَّةَ فَسَمِعْتُ خَشْفَةً فَقُلْتُ مَنْ هَذَا قَالُوا هَذِهِ الْغُمَيْصَاءُ بِنْتُ مِلْحَانَ أُمُّ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ .** [2]

ترجمة : زه جنت ته ننوتلم هلته مې اواز واورېدو پوښتنه مې وکوله دا څوک دي دوی راته وويل : دا الغميصاء بنت ملحان ده د انس بن مالک مور .

## حسنين

د رسول الله ﷺ ګران لمسي حضرت حسن او حضرت حسين چې رسول الله ﷺ ته ډېر زيات ګران وو د دوی په اړه رسول الله ﷺ فرمايي : **ان ملكا من السماء لم يكن زارني فاستأذن الله في زيارتي فبشرني أن الحسن والحسين سيدا شباب أهل الجنة .** [3]

ترجمة : بېشکه يوه فرښته چې مخکې يې زما

---

1 **مسند امام احمد ابن حنبل**
2 **صحيح مسلم**
3 **مجمع الزوائد**

زیارت نه وو کړی له الله نه یې زما د زیارت اجازه وغوښته هغه ماته زیری راکړو چې حسن او حسین به د جنت د ځوانانو مشران وي .

## حضرت بلال

حضرت بلال چې د هیڅا د تعریف اړ نه دی او هرڅوک یې له نوم سره شناخته دي داسې په پاکه توګه او د زړه د اخلاص نه یې ایمان راوړی وو چې د مجبورو او د بل چا د لاس لاندې خلکو ته یې یوه نمونه جوړه کړیده دده په اړه د حضرت بریدة څخه روایت دی رسول الله ﷺ فرمایل : **سَمِعْتُ حَشَفَةً أَمَامِي ، فَقُلْتُ : مَنْ هَذَا ؟ فَقَالُوا : بِلالٌ ، فَأَخْبَرَهُ ، وَقَالَ : بِمَ سَبَقْتَنِي إِلَى الْجَنَّةِ ؟ قَالَ : يَا رَسُولَ اللهِ ، مَا أَحْدَثْتُ إِلا تَوَضَّأْتُ ، وَلا تَوَضَّأْتُ إِلا رَأَيْتُ أَنَّ لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ رَكْعَتَيْنِ أُصَلِّيهِمَا قَالَ : بِهَا** . [1]

ترجمة : (په جنت کې) ما په خپل مخ کې (تر ځان وړاندې) اواز واورېدو ما وویل دا څوک دی؟ دوی راته وویل دا بلال دی بیا یې ددې په اړه خپله حضرت بلال ته هم خبر ورکړو ورته یې وویل : ته په څه سره زما نه جنت ته مخکې ورسېدې؟ حضرت بلال ورته وویل : زه چې کله هم بې اودسه شم نو اودس کوم او کله هم چې اودس وکوم نو دوه رکعته مونځ کوم رسول الله ﷺ ورته وویل : په همدې سره .

حضرت جابر فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **أُدْخِلْتُ الْجَنَّةَ ، فَسَمِعْتُ خَشْفَةً أَمَامِي ، فَقُلْتُ : مَنْ هَذَا ؟ قَالَ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلاَمُ : هَذَا بِلاَلٌ .** [2]

ترجمة : زه جنت ته ننه ایستل شوم او په خپله

[1] **الاحاد و المثاني**
[2] **صحيح ابن حبان**

مخه کې مې اواز واورېدو ما ویل دا څوک دي؟ حضرت جبریل راته وویل دا بلال دی .

د حضرت ابن عباس څخه روایت دی هغه فرمایي :
**لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِنَبِيِّ اللَّهِ ﷺ دَخَلَ الْجَنَّةَ ، فَسَمِعَ وَجْسًا ، فَقَالَ : " يَا جِبْرِيلُ ، مِنْ هَذَا ؟ " . قَالَ : هَذَا بِلَالٌ الْمُؤَذِّنُ ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ لِلنَّاسِ حِينَ جَاءَ : " قَدْ أَفْلَحَ بِلَالٌ ، رَأَيْتُ لَهُ كَذَا وَكَذَا.**[1]

ترجمة : په کومه شپه چې د شپې رسول الله ﷺ بوتلل شو جنت ته ننوتلو هلته یې اواز واورېدو پوښتنه یې وکوله جبریله دا څوک دي هغه ورته وویل : دا بلال مؤذن دی رسول الله ﷺ چې کله راغلو خلکو ته یې وویل : بلال کامیاب شو ما داسې ولیدو .

## الأصيرم عمرو بن ثابت

دا هغه بختور صحابي وو چې تر ډېره وخته پورې به خلکو ورته اسلام وړاندې کولو لکن ده ورڅخه انکار کولو کله چې رسول الله ﷺ له خپلو صحابه وو سره د اُحد میدان ته روان شو دده زړه ته اسلام لاره ور پیدا کړه او په ایمان مشرف شو په ډېره مېړانه له رسول الله ﷺ سره میدان ته لاړو او په اُحد کې الله ورته شهادت نصیب کړو حضرت ابو هریره یو وخت په مجلس کې ناست وو حاضرو خلکو ته یې وویل : ماته داسې څوک را وښایي چې هغه جنت ته تللی وي او بالکل یې مونځ نه وي کړی ددې سوال په ځواب کې حاضر خلک چُپ پاتې شول بیا یې له ده مبارک څخه پوښتنه وکوله ده وفرمایل : دا حضرت أصیرم بني عبد الأشهل عمرو بن ثابت بن وقش وو دده واقعه داسې وه :

[1] **مسند امام احمد بن حنبل**

كان يأبى الإسلام على قومه، فلما كان يوم أحد وخرج رسول الله إلى أحد بدا له الإسلام فأسلم، فأخذ سيفه فغدا حتى القوم فدخل في عرض الناس فقاتل حتى أثبتته الجراح، فبينما رجال عبد الأشهل يلتمسون قتلاهم في المعركة إذا هم به، قالوا: والله إن هذا لأصيرم، وما جاء به لقد تركناه وإنه لمنكر لهذا الحديث فسألوه ما جاء به، فقالوا: ما جاء بك يا عمرو أحدثاً على قومك أم رغبة في الإسلام؟ فقال: بل رغبة في الإسلام آمنت بالله ورسوله وأسلمت ثم أخذت سيفي فغدوت مع رسول الله ﷺ فقاتلت حتى أصابني ما أصابني، فلم يلبث أن مات في أيديهم فذكروه لرسول الله ﷺ فقال «إنه من أهل الجنة.[1]

ترجمة : ده ته به چې دده د قوم خلکو د اسلام دعوت ورکاوه ده به ورځخه انکار کاوه کله چې د اُحد ورځ وه رسول الله ﷺ اُحد ته ووتلو اسلام ورته ښه ښکاره شو نو اسلام یې قبول کړو خپله توره یې را واخیسته په قوم پسې ور ورسېدو د اسلام لپاره یې په جنګ شروع وکوله جنګ یې وکولو تردې چې هغه زخمي شو کله چې دده د قبیلې عبد الاشهل خلک په خپلو کسانو پسې ګرځېدل او د جنګ په میدان کې یې خپل شهیدان کتل په ده باندې ورغلل ویل یې والله دا خو اصیرم دی دا دلته د څه لپاره راغلی دی مونږ خو چې راتلو ده خو ددې خبرې (اسلام) څخه انکار کاوه پوښتنه یې ترې وکوله : د څه لپاره راغلی یې د خپل قوم نه د دفاع لپاره او که په اسلام کې دې رغبت پیدا شوی وو؟ ده ورته وویل : نه په اسلام کې مې رغبت پیدا شوی وو په الله او د هغه په رسول باندې مې ایمان راوړو بیا مې توره را واخیسته د رسول الله ﷺ سره را ووتلم جنګ مې وکولو چې دا زخم راته ورسېدو ډېر وخت تېر نه شو چې د دوی په لاسونو کې یې ساه ورکړه رسول الله ﷺ ته یې د هغه واقعه بیان کړه رسول الله ﷺ وفرمایل هغه جنتي دی .

[1] رواه الامام احمد

# حضرت حارثة بن النعمان

جليل القدر انصاري خزرجي صحابي دى په بدر، احد، خندق او د رسول اللهﷺ سره په هر ميدان کې حاضر وو حضرت ابن عباس فرمايي يو وخت حارثة بن النعمان په رسول الله ﷺ سره تېريدو رسول الله ﷺ له حضرت جبريل سره خبرې کولې ده وربانديې سلام وانه اچولو حضرت جبريل پوښتنه وکوله چې ده سلام ولې وانه اچولو؟ بيا رسول الله ﷺ له ده څخه پوښتنه وکوله ته چې هلته تېر شوې تا سلام ولې وانه اچولو؟ ده ورته وويل : ما ته وليدې يو کس سره د خبرې کولې ما نه غوښتل ستاسې خبرې کټ کړم رسول الله ﷺ ورته وويل : ولې تا هغه کس وليدو؟ ده ورته وويل : هو ما وليدو رسول الله ﷺ ورته ويل : هغه حضرت جبريل وو.

حضرت عائشة فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **دَخَلْتُ الْجَنَّةَ ، فَسَمِعْتُ فِيهَا قِرَاءَةً ، فَقُلْتُ : مَا هَذِهِ ؟ قَالُوا : حَارِثَةُ بْنُ النُّعْمَانِ ، كَذَاكُمُ الْبِرُّ ، كَذَاكُمُ الْبِرُّ ، كَذَاكُمُ الْبِرُّ ، وَكَانَ بَرًّا بِأُمِّهِ .** [1]

ترجمة : زه جنت ته ننوتلم هلته مې تلاوت واوريدو ما وويل : دا څه شى دي؟ دوى راته وويل دا حارثة بن النعمان دى داسې نيکي کوئ ، داسې نيکي کوئ ، داسې نيکي کوئ هغه له مور سره ډېره نيکي کوله .

## آل ياسر

د حضرت عمار بن ياسر کورنى ده په اسلامي

[1] صحيح الجامع

تاریخ کې مشهور خلک دي د اسلام په شروع کې دا
هغه کورنی ده چې د کفارو له لاسه یې ډېر
ظلمونه ولیدل خو الله په اسلام باندې دومره کلک
کړي وو چې مرګ ته تیار وو خو د اسلام څخه یوه
زره هم وانه وښتل د حضرت عمار مور حضرت
سمیة په اسلام کې اول شهیده ده د ابي جهل په
لاس په شهادت ورسېده همدارنګه د هغې خاوند
کله چې دوی په عذاب کې وو رسول الله ﷺ ورته
زیری ورکړی وو رسول الله ﷺ ورته فرمایلي وو :
**صبرا آل یاسر، صبرا آل یاسر، فإن موعدکم الجنة** (صبر وکوئ صبر
وکوئ آل یاسر بېشکه ستاسې ځای جنت دی) او په
یو روایت کې یې ورته ویلي وو : **صبرا یا آل یاسر، اللهم
اغفر لآل یاسر، وقد فعلت** (صبر وکوئ آل یاسر ای الله آل
یاسر ته بښنه وکوې او بېشکه تا ورته کړېده)

## حضرت ابو الدحداح

جلیل القدر انصاري صحابي دی ثابت بن الدحداح،
ابو الدحداح ، ابو الدحداحة پدې ټولو نومونو
یادېدو دا مبارک هغه لوړ شخصیت وو چې کله د
اُحد په جنګ کې منافقینو اوازه خپره کړه چې
محمد ﷺ شهید شو ده په لوړ اواز چغه کړه **یا
معشر الأنصار إن کان محمد قتل، فإن الله حي لا یموت فقاتلوا عن دینکم**
(یعني اې انصارو که چېرته محمد ﷺ شهید شوی
وي الله ژوندی دی هغه نه مړ کیږي د خپل دین څخه
جنګ وکوئ) د احد په جنګ کې په ډېر میړانه و
جنګېدو په هغه وخت کې خالد بن ولید چې د
کفارو له لوري جنګېدو او په اسلام نه وو مشرف
شوی په ده یې د نیزې وار وکولو له ده سره په
خوا کې چې څومره انصار ملګري وو په شهادت
ورسېدل دی مبارک له هغه ټولو زخمونو څخه جوړ
شو د هجرت په ٦ کال له بیماري نه وفات شو .

حضرت عبد الله بن مسعود فرمايي لَمَّا نَزَلَتْ:: مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا"[الحديد آية 11] ، قَالَ أَبُو الدَّحْدَاحِ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يُرِيدُ منَّا الْقَرْضَ؟ قَالَ: نَعَمْ، يَا أَبَا الدَّحْدَاحِ، قَالَ: أَرِنِي يَدَكَ، فَنَاوَلَهُ يَدَهُ، فَقَالَ: إِنِّي قَدْ أَقْرَضْتُ رَبِّي حَائِطِي، وَفِي حَائِطِي سِتُّ مِائَةِ نَخْلَةٍ، ثُمَّ جَاءَ إِلَى الْحَائِطِ فَنَادَى يَا أُمَّ الدَّحْدَاحِ، وَهِيَ فِي الْحَائِطِ، فَقَالَتْ: لَبَّيْكَ، فَقَالَ: اخْرُجِي فَقَدْ أَقْرَضْتُهُ رَبِّي[1] .

ترجمة : کله چې دا آیت نازل شو (څوک داسې شته چې الله ته نېک قرض ورکړي حضرت ابو الدحداح وويل يا رسول الله ﷺ الله له مونږ نه قرض غواړي؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : هو يا ابا الدحداح ده ورته وويل زه ستا لاس غواړم رسول الله ﷺ خپل مبارک لاس ورکړو ورته يې وويل زه خپل ټول باغ الله ته قرض ورکوم او زما په باغ کې شپږ سوه ٦٠٠ خورماوې دي بيا خپل باغ ته راغلو خپلې ښځې ته يې اواز وکولو او هغه په باغ کې وه .. هغې ورته وويل لبيک .. ده ورته وويل : د باغ نه بهر شه دا ما الله ته قرض ورکړو .

## حضرت ورقة بن نوفل

تاريخي شخصيت وو کله چې په رسول الله ﷺ باندې وحی راغله نه پوهېدو چې دا څه ډول کيفيت دی نو حضرت خديجې دې کس ته ور وستلی وو دا د اکثر اقوالو له مخې عيسايي وو او د انجيل تلاوت به يې کاوه هغه رسول الله ﷺ ته ډېرې خبرې وکولې په رسول الله ﷺ يې ايمان راوړو او تمنا يې ښکاره کړه چې کاش دی تر هغه وخته پورې ژوندی وي چې کله رسول الله ﷺ خپل د نبوت کار خلکو ته ښکاره کوي او دی به د رسول الله ﷺ

[1] المعجم الكبير للطبراني

مرسته وکوي .

حضرت عائشه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : لاَ تَسُبُّوا وَرَقَةَ فَإِنِّي رَأَيْتُ لَهُ جَنَّةً أَوْ جَنَّتَيْنِ . [1]

ترجمة : ورقة ته ښکنځل مه کوئ بېشکه ما د هغه لپاره يو يا دوه جنتونه وليدل .

## صحابه بالعموم

دا پورتني کسان بالخصوص د دوی په اړه روايات راغلي دي چې هغوی جنتيان دي او هغه کسان چې د رسول الله ﷺ ملګري يې کړي ده او په هغه باندې يې ايمان راوړی دی او له هغه سره د تکليفونو برداشت کولو ته تيار شوي وو د هغوی لپاره په عمومو توګه جنت ياد کړل شوی دی الله فرمايي : وَالسَّابِقُونَ الأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالأَنصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُم بِإِحْسَانٍ رَّضِيَ اللّهُ عَنْهُمْ وَرَضُواْ عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ . [2]

ترجمة : او هغه وړاندني اولني (ايمان لرونکي) له مهاجرينو نه او له انصارو نه او (نور) هغه کسان چې متابعت کړی دی دوی د (سابقانو) په احسان (نيکي) سره راضي شوی دی الله له دوی نه (په قبول د طاعت سره) او راضي شوي دي دوی له الله نه (په اعطاء د نعمت) او تيار کړی دی (الله) دوی ته جنتونه چې بهيږي لاندې د (ونو او مانيو د) دوی (ځلور قسمه) ويالې چې تل به وي دوی په هغو کې همېشه ، دغه (رضا او جنت) بری دی ډېر لوی.

په بل ځای کې الله فرمايي :لَا يَسْتَوِي مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ

---

[1] المستدرک
[2] سورة التوبة آية ١٠٠

الْفَتْحِ وَقَاتَلَ أُوْلَئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِينَ أَنفَقُوا مِن بَعْدُ وَقَاتَلُوا وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَى وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ . [1]

ترجمة : نه دي برابر له تاسې څخه هغه چې لګولی ئې دی (مال خپل په لاره د الله کې) پخوا له فتحې (د حدیبیې یا د مکې) څخه او بیا یې جنګ کړی دی (له اعداء الله سره لپاره د اعلاء د کلمة الله) دا لګوونکي د مالونو خپلو په لاره د الله کې او جنګېدونکي پخوا له فتحې (د حدیبیې یا دمکې نه) ډېر لوی دی له جهته د درجې مرتبې له هغو کسانو چې لګوي مال خپل په لاره د الله کې وروسته (له فتح مکې نه) او جنګیږي (لپاره د اعلاء د کلمة الله) او له دواړو طائفو سره وعده کړې ده الله د نیکي (جنت)

## تر قیامت وړاندې جنت ته ننوتلي

جنت ته به هغه وخت خلک ځي کله چې د قیامت په ورځ د خلکو په مینځ کې فیصله وشي جنتیان او دوزخیان سره جدا کړل شي او د هرې ډلې په اړه فیصله وشي بیا به دواړه ډلې په ټولي ټولي سره جنت او دوزخ ته لاړ شي ځینې داسې خلک هم شته چې تر قیامت وړاندې جنت ته ننوتلي وي د مثال په توګه :

---

[1] سورة الحديد آية ١٠

# شهيدان

شهيدان هم په هغه کسانو کې چې دي چې تر قيامت وړاندې جنت ته ننوزي څنګه چې شهيدان شي مبارک ارواح يې جنتونو ته ځي الله فرمايي : وَلاَ تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُواْ فِي سَبِيلِ اللّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاء عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ .[1]

ترجمة : او له سره ګمان مه کوئ! (اې محمده يا اې سامعه !) پر هغو کسانو چې وژل شوي دي دوی په لاره د الله (جهاد او طاعت) کې د مړو (مړه نه دي) بلکه ژوندي دي په نزد د رب خپل رزق ورته ورکول کيږي (له جنتي خوراکونو او څښاکونو څخه) .

حضرت مسروق فرمايي مونږ د حضرت عبد الله بن مسعود څخه ددې آيت د مطلب په اړه پوښتنه وکوله چې هغوی ته څه ډول رزق ورکول کيږي؟ هغه مبارک وفرمايل مونږ هم ددې په اړه له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکوله رسول الله ﷺ وفرمايل : د شهيدانو ارواح په شنو مارغانو کې وي تر عرش لاندې چراغونه وي په هغې کې کيني او په جنت کې يې چې کوم ځای ته خوښه شي هلته آلوزي او بيا بېرته هغه چراغونو ته راځي الله ورڅخه پوښتنه کوي تاسې څه شي ته اشتهاء لرئ؟ څه شی غواړئ؟ دوی ورته وايي مونږ به نور څه شی وغواړو زمونږ چې چېرته خوښه شي په جنت کې هغه ځای ته ورځو بيا به ورڅخه همدارنګه پوښتنه وشي او بيا به ورڅخه همداسې پوښتنه وشي کله چې دوی پوه شي چې دوی تر هغه وخته نه پرېښودل کيږي چې ترڅو څه شی ونه غواړو دوی به ووايي ربه مونږ غواړو چې زمونږ راواح بېرته زمونږ بدنونو ته وګرځول شي ترڅو ستا په لاره کې جهاد وکوو او ستا په لاره کې يو ځل بيا ووژل شو کله

---

[1] سورة آل عمران آية ١٦٩

چې ښکاره شي چې د دوی څه نه دي په کار پرې به ښودل شي .

## د جنت نومونه

د جنت لپاره متعدد نومونه دي

## جنت

جنت يو عام نوم دی چې د هغه ځای او هغه څه چې هلته دي د ټولو شيانو لپاره کارول کيږي او اصل کې ددې لفظ معنی د سِر او پردې نه جوړه شوېده او دا (ج) او (ن) چې په عربي کې په کومو الفاظو کې کارول شوي وي هغه اکثر پټ وي لکه جنين (د مور په ګېډه کې ماشوم) جن (پېرى) او جنت ته جنت ددې امله ويل کيږي چې دی هم د خلکو د سترګو ، ذهنونو او هرشی نه په پرده کې دی او پټ دی ځکه د جنت نعمتونه خو نه چا ليدلي ، نه آورېدلي دي او نه د کوم بشر په زړه کې ور تاو شوي دي .

## دار السلام (د امن کور)

الله په خپله په قرآن کريم کې همدا نوم ورته ذکر کړی دی الله فرمايي : لَهُمْ دَارُ السَّلَامِ عِنْدَ رَبِّهِمْ ( د دوی لپاره د دوی د رب سره دار السلام دی) په بل ځای کې الله فرمايي : وَاللَّهُ يَدْعُو إِلَى دَارِ السَّلَامِ (الله دار السلام ته غوښتنه کوي) جنت ته دارالسلام ويل کيږي ځکه جنت ټول د امن او سلامتيا ځای دی دلته چې هرڅوک ورشي هغه بيا د هر ډول خطر، مصيبت، غم او تکليف نه په امن کې شي .

## دار الخلد (د همېشه پاتې کېدلو کور)

جنت ته دار الخلد هم ويل کيږي ځکه دلته هم هغه کسان چې يو ځل ورننوزي همېشه پاتې کيږي الله د جنتيانو په اړه فرمايي : **وَمَا هُم مِّنْهَا بِمُخْرَجِينَ** (يعني دوی به لدې جنت څخه نه ويستل کيږي) .

## دار المقامة (د پاتې کېدلو ځای)

جنت ته دار المقامة هم ددې امله وايي چې هلته څوک ورشي هماغلته پاتې کيږي همېشه نه به مړه کيږي او نه به ترېنه بل ځای ته لېږدول کيږي همدلته به پاتې وي الله مونږ ته د جنتيانو يوه مقاله بيانوي چې هغوی به فرمايي : **وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ ۖ إِنَّ رَبَّنَا لَغَفُورٌ شَكُورٌ (34) الَّذِي أَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ مِن فَضْلِهِ لَا يَمَسُّنَا فِيهَا نَصَبٌ وَلَا يَمَسُّنَا فِيهَا لُغُوبٌ (35) .** [1]

ترجمة : او وبه وايي (جنتيان په وخت د دخول د جنت کې) ټوله ثناء صفت خاص الله ته دی هغه الله چې بوئې ته (لرې ئې کړ) له مونږ څخه خفګان بېشکه رب زمونږ خامخا ښه بښونکی (د عاصيانو) ښه قدردان (د نيکانو) دی هغه (رب) چې رائې وستو مونږ کور د اقامت (جنت ته) له فضله خپله چې نه رسيږي مونږ ته په دغه (جنت) کې هېڅ مشقت او نه رسيږي مونږ ته په دغه (جنت) کې هېڅ ستوماني خفګان.

---

[1] **سورة فاطر**

## جنة المأوی (د سکون او قرار ځای)

جنت ته جنة المأوی ددې امله ویل کیږي چې دلته کله جنتیان ورشي هلته به سکون او قرار کوي الله فرمایي : عِندَهَا جَنَّةُ الْمَأْوَى (د سدرة المنتهی سره جنة الماوی ده)

## جنات عدن (د دوام او همېشه والي جنتونه)

ځینې علماء فرمایي چې جنات عدن په جنت کې د یو ډول جنتونو نوم دی او ځینې علماء فرمایي چې د ټول جنت صفت دی الله فرمایي : جَنَّاتِ عَدْنٍ الَّتِي وَعَدَ الرَّحْمَنُ عِبَادَهُ بِالْغَيْبِ إِنَّهُ كَانَ وَعْدُهُ مَأْتِيًّا (61) .[1]

ترجمة : جنتونه د تل اوسېدلو هغه چې وعده ئې کړې ده رحمن له بندګانو خپلو سره په غیب باندې (چې نه ئې دي لیدلي دا جنتونه) بېشکه شان دادی چې ده وعده د ده (چې جنت دی) خامخا به راځي ورته اهل یې.

## دار الحیوان (د ژوند ځای)

جنت ته دار الحیوان هم ویل کیږي ځکه هلته چې یو ځل څوک ورشي هلته بیا مرګ نشته هلته به خلک د ټول عمر او همېشه لپاره ژوندي وي او له خپل ژوند نه به خوند اخلي الله فرمایي : وَإِنَّ الدَّارَ الْآخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ (بېشکه دار الاخرة یعني جنت د ژوند ځای دی)

---

[1] سورة مريم

## الفردوس (باغ)

جنت ته فردوس هم ویل کیږي او ځیني علماء فرمايي چې فردوس په جنتونو کې یو غوره او لوړ مقام دی هغه ته ویل کیږي الله فرمايي : أُوْلَئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ .[1]

ترجمة : هم دغه (مؤمنان چې پورتني یاد شوي شپږ نېک صفات ولري) هم دوی دي وارثان (لا ئقان نه نور څوک) هغه (وارثان) چې میراث به اخلي (جنت د) فردوس دوی به په دغه (جنت الفردوس) کې تل پاتې کېدونکي وي.

## جنات النعیم (د نعمتونو جنتونه)

جنت ته جنات النعیم هم ویل کیږي ځکه د جنت هرڅه له نعمتونو څخه ډک دي چې هغه هر ډول نعمتونه دي کوم چې خوړل کیږي ، استعمالیږي ، ښکل کیږي او داسې نور الله فرمايي : إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ جَنَّاتُ النَّعِيمِ (هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېک عملونه یې کړي دي د هغوی لپاره جنات النعیم دي) .

## المقام الامین (د امن ځای)

جنت ته مقام امین هم ویل کیږي ځکه دا ټول ځای د امن ځای دی څوک هم چې هلته ورشي هلته په امن شي بیا نه ورسره د کوم لوري نه ویره وي او نه د څه خطر احساس کوي الله فرمايي : انَّ الْمُتَّقِينَ فِي مَقَامٍ أَمِينٍ (بېشکه مؤمنان به په مقام امین کې وي)

[1] سورة المؤمنون آية ١٠-١١

# مقعد صدق (د رښتيا د ناستې ځای)

جنت ته مقعد صدق ددې امله ويل کيږي چې دلته هر هغه شی پيدا کيږي چې يو انسان يې د ښه ځای کيناستلو لپاره ضرورت محسوس کوي الله فرمايي : إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَنَهَرٍ * فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ عِنْدَ مَلِيكٍ مقتدر .

ترجمة : بېشکه وېرېدونکي به په جنتونو کې وي او په ويالو کې وي چې څکي له اوبو شرابو ، شاتو ، شودو د هغو) په مجلس رښتيا (د جنت) کې په نزد د دباچا لوی قدرت لرونکي (چې هېڅوک يې نشي عاجزولی) .

## د جنت مرتبې

په جنت کې مختلفې درجې دي او هغه درجې په دنيا کې د انسانانو په عملونو ورکول کيږي لکه مخکې هم تېر شول چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې جنت هېڅوک هم په خپل عمل نشي ګټلی څوک چې جنت ته ځي دا ټول د الله په فضل اور حم سره ځي صحابه وو ترې پوښتنه وکوله حتی ته هم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هو زه هم جنت ته د الله په فضل او رحم سره ځم .. نو وروسته ددې چې ټول جنتيان د الله په فضل او رحم سره جنت ته ننوزي هلته په جنت کې به ځينو ته لوړې مرتبې او ځينو ته ښکته ورکول کيږي دا تقسيم به د دوی د عملونو په حساب وي او د الله عدالت چې د انصاف نه ډک دی داسې نه کوي چې يو ځل څوک جنت ته ننوزي بيا به د هغوی د دنيا عملونو ته بالکل نظر نه کيږي بلکه دلته په دنيا کې د چا يو ځل سبحان الله ويل هم د الله په عدالت کې نه ضائع کيږي ددې بدل به انسان ته ورکول کيږي اودا د جنت د مرتبو او درجو ذکر په قرآن کريم کې هم په مختلفو ځايونو کې راغلی دی الله فرمايي :

وَمَنْ يَأْتِهِ مُؤْمِنًا قَدْ عَمِلَ الصَّالِحَاتِ فَأُوْلَئِكَ لَهُمُ الدَّرَجَاتُ الْعُلَى .[1]

ترجمة : او هرڅوک چې راشي دغه (الله) ته (په قيامت کې) په دې حال کې چې مؤمن وي چې په تحقيق کړي ئې وي ښه (عملونه په دنيا کې) پس دغه مؤمنان چې دي شته دوی ته (درجې) مرتبې ډېرې اوچتې.

وَمَا لَكُمْ أَلَّا تُنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلِلَّهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَا يَسْتَوِي مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ أُوْلَئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِينَ أَنفَقُوا مِن بَعْدُ وَقَاتَلُوا وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَى وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِير .[2]

ترجمة : او څه مانع عذر دی تاسې لره چې نه نفقه کوئ نه لګوئ (مال خپل) په لاره د الله کې او خاص الله لره دی ميراث د اسمانونو او د زمکې نه دي برابر له تاسې څخه هغه چې لګولی ئې دی (مال خپل په لاره د الله کې) پخوا له فتحې (د حديبيې يا د مکې) څخه او بيا يې جنګ کړی دی (له اعداء الله سره لپاره د اعلاء د کلمة الله) دا لګوونکي د مالونو خپلو په لاره د الله کې او جنګېدونکي پخوا له فتحې (د حديبيې يا دمکې نه) ډېر لوی دی له جهته د درجې مرتبې له هغو کسانو چې لګوي مال خپل په لاره د الله کې وروسته (له فتح مکې نه) او جنګيږي (لپاره د اعلاء د کلمة الله) او له دواړو طائفو سره وعده کړې ده الله د نيکي (جنت).

لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِينَ دَرَجَةً وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَى وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا (95)

---

[1] سورة طه آية ٧٥

[2] سورة الحديد آية ١٠

دَرَجَاتٍ مِنْهُ وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا (٩٦). [1]

ترجمة : نه دي برابر (الله ته) كېناستونكي (په كور كې) له مؤمنانو نه (له جهاده) بې له خاوندانو د عذره او جهاد كوونكي په لاره د الله كې ( د دين د ترقي لپاره) په مالونو خپلو سره او په ځانونو خپلو سره فضيلت وركړى دى الله جهاد كوونكو ته په (لګولو د) مالونو خپلو سره او (په جارولو د) ځانونو خپلو سره پر كېناستونكو باندې (له معذرته) په درجه كې او له ټولو سره (كه مجاهد وي كه معذور ناست) وعده كړې ده الله د ښې جزا (جنت) او فضيلت وركړ دى الله جهاد كوونكو ته پر كيناستونكو (له معذرته) په اجر عظيم ډېر لوى سره چې مرتبې دي (لويې چې په عزت او كرامت كې سره متفاوتې دي) له (جانبه د) الله او مغفرت دى او رحمت دى او دى الله ښه بښونكى (د خطياتو) ډېر رحم والا (په انعام د اجر او ثواب سره) .

الَّذِينَ آمَنُواْ وَهَاجَرُواْ وَجَاهَدُواْ فِي سَبِيلِ اللّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ أَعْظَمُ دَرَجَةً عِندَ اللّهِ وَأُوْلَئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ . [2]

ترجمة : هغه كسان چې ايمان ئې راوړى دى (په ټولو مؤمن به شيانو) او هجرت ئې كړى دى او جهاد ئې كړى دى په لاره د الله كې (د دين د ترقي لپاره) په مالونو خپلو (چې په جهاد كې يې لګوي) او په ځانونو خپلو (چې په غزا كې ئې قربانوي) ډېر لوى دى (له نورو نه ) له جهته د درجې په نزد د الله او هم دغه (ستايل شوي) كسان هم دوى دي په مراد رسېدونكي.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوا فِي الْمَجَالِسِ فَافْسَحُوا يَفْسَحِ اللَّهُ لَكُمْ وَإِذَا

---

[1] سورة النساء
[2] سورة التوبة آية ٢٠

قِيلَ انشُزُوا فَانشُزُوا يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ . [1]

ترجمة : اې هغو کسانو چې ایمان ئې راوړی دی (یعنې اې مؤمنانو) کله چې وویل شي تاسې ته ځای فراخ کړئ په مجلس کې نو ځای فراخ کړئ چې فراخوالی وکړي الله تاسې لره (په جنت کې) او کله چې وویل شي (تاسې ته) چې پورته شئ! (کوم ښه کار ته لکه مونځ او نور) نو پورته شئ! پورته کوي الله هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی له تاسې څخه (په طاعت فرمان برداري د ده) او (خاص پورته کوي) هغه کسان چې ورکړی شوی دی دوی ته علم پوه په درجو مرتبو کې او الله په هغو (کارونو) چې کوئ یې تاسو ښه خبردار دی (نو جزاء به پرې درکړي) .

مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهُ فِيهَا مَا نَشَاءُ لِمَنْ نُرِيدُ ثُمَّ جَعَلْنَا لَهُ جَهَنَّمَ يَصْلَاهَا مَذْمُومًا مَدْحُورًا (18) وَمَنْ أَرَادَ الْآخِرَةَ وَسَعَى لَهَا سَعْيَهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَأُولَئِكَ كَانَ سَعْيُهُمْ مَشْكُورًا (19) كُلًّا نُمِدُّ هَؤُلَاءِ وَهَؤُلَاءِ مِنْ عَطَاءِ رَبِّكَ وَمَا كَانَ عَطَاءُ رَبِّكَ مَحْظُورًا (20) انْظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَلَلْآخِرَةُ أَكْبَرُ دَرَجَاتٍ وَأَكْبَرُ تَفْضِيلًا (21) . [2]

ترجمة : هرڅوک چې غواړي (په عمل خپل سره) فقط دغه دنیا نو په تلوار به ورکړو مونږ ده ته په دې دنیا کې هومره چې اراده وفرمایو مونږ بیا به وګرځوو مونږ ده ته (عذاب د) دوزخ (په آخرت کې) چې ننوزي به په هغه دوزخ کې ملامت کړل شوی شړل شوی (له رحمته) او هرڅوک چې غواړي آخرت (جنت) او سعی کوي هغه ته سعی لائقه د ده (په طاعت د الله ) حال دا چې دی (خالص) مؤمن هم وي نو دغه کسان ده سعی د د وی قبوله (په نزد د الله کې) هر یوه (له دغو طلب ګرو د

[1] سورة المجادلة آية ١١
[2] سورة الاسراء آية ١٨-٢١

دنیا او عقبی) سره مدد کمک کوو مونږ (په روانه ورکړه سره) دغه اولې ډلې سره (چې طالبان د دنیا دي) او د هغه دوهم ټولي سره (چې طالبان د عقبی دي) له ورکولو د رب ستا او نه دي ورکول د رب ستا (په دنیا کې) منع کړل شوي (له هیچا نه) وګوره چې څرنګه فضیلت ورکړی (غوره کړي) دي مونږ ځینې د دوی ته پر ځینو نورو (په رزق او په نورو کې) او خامخا آخرت ډېر لوی دی له جهته د مرتبو او ډېر لوی دی له جهته د بهتر والي (له دنیا نه) .

**تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ مِّنْهُم مَّن كَلَّمَ اللّهُ وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجَاتٍ وَآتَيْنَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنَاتِ وَأَيَّدْنَاهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ وَلَوْ شَاء اللّهُ مَا اقْتَتَلَ الَّذِينَ مِن بَعْدِهِم مِّن بَعْدِ مَا جَاءتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ وَلَكِنِ اخْتَلَفُواْ فَمِنْهُم مَّنْ آمَنَ وَمِنْهُم مَّن كَفَرَ وَلَوْ شَاء اللّهُ مَا اقْتَتَلُواْ وَلَكِنَّ اللّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ .** [1]

ترجمة : دا ټول رسولان (چې له آدم تر محمده پورې یاد شول) فضیلت ورکړی دی مونږ ځینې د دوی ته پر ځینو نورو ځینې له د وی څخه هغه دي چې کلام کړی دی الله (له دوی سره چې آدم ، موسی او محمد ﷺ دی) او پورته کړي ئې دي ځینو د دوی ته درجې (لکه محمد ﷺ) او ورکړی دی مونږ عیسی زوی د مریمې ته ښکاره معجزې او قوي کړی دی مونږ هغه په روح القدس (جبریل یا انجیل یا اسم اعظم یا عیسوي روح) سره او که اراده کړې وی الله (د ټولو خلکو د هدایت) نو نه به وو کړی جنګ (او اختلاف) هغو کسانو چې وروسته له دې رسولانو څخه وو (د دوی له امتونو څخه) وروسته له هغه چې راغلې دوی ته ښکاره معجزې و لیکن دوی اختلاف سره وکړ نو ځینې له دوی څخه هغه څوک دي چې ثابت پاتې شوي دي په ایمان او ځینې له دوی څخه هغه څوک دي چې کافران شوي او که اراده کړې وای الله (د دوی د هدایت) نو دوی به

[1] سورة البقرة آية ٢٥٣

نه وو کړی مخالفت ولیکن الله کوي هغه کار چې اراده لري (د چا د هدایت او ضلالت) .

په احادیثو کې هم ددې ذکر راغلی دی چې ځینې مؤمنین تر ځینو نورو غوره دي او په جنت کې به هم همدا په دنیا کې چې ډېر نیک کسان وي دا به په درجه کې تر هغه څخه غوره وي چې هغوی لږ نېک عملونه کړي وي له حضرت ابو هریره څخه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **الْمُؤْمِنُ الْقَوِىُّ خَيْرٌ وَأَحَبُّ إِلَى اللَّهِ مِنَ الْمُؤْمِنِ الضَّعِيفِ وَفِى كُلٍّ خَيْرٌ احْرِصْ عَلَى مَا يَنْفَعُكَ وَاسْتَعِنْ بِاللَّهِ وَلاَ تَعْجِزْ وَإِنْ أَصَابَكَ شَىْءٌ فَلاَ تَقُلْ لَوْ أَنِّى فَعَلْتُ كَانَ كَذَا وَكَذَا. وَلَكِنْ قُلْ قَدَرُ اللَّهِ وَمَا شَاءَ فَعَلَ فَإِنَّ لَوْ تَفْتَحُ عَمَلَ الشَّيْطَانِ** .[1]

ترجمة : قوی مؤمن غوره دی او الله ته تر ضعیف مؤمن نه ګران دی او په هر خیر کې حرص په هغه شي کوه چې تاته فایده کوي د الله نه مرسته وغواړه مه عاجز کیږه که چېرته څه درته ورسېدل داسې مه وایه که چېرته مې داسې کړي وای داسې به شوي وای بلکه داسې وایه چې څه د الله خوښه او د هغه تقدیر وي هغه شان کوي ځکه دا لو (که چېرته) تکی د شیطان عمل را خلاصوي .

د حضرت عمرو بن العاص یو ازاد کړل شوی غلام ابي قیس فرمایي حضرت عمرو بن العاص فرمایل چې هغه له رسول الله ﷺ څخه واورېدل هغه فرمایل : **إِذَا حَكَمَ الْحَاكِمُ فَاجْتَهَدَ ثُمَّ أَصَابَ فَلَهُ أَجْرَانِ ، وَإِذَا حَكَمَ فَاجْتَهَدَ ثُمَّ أَخْطَأَ فَلَهُ أَجْرٌ** .[2]

ترجمة : کله چې حاکم د یو حکم د شرعي بنې په را پیدا کولو کې کوښښ وکوي او صحیح یې را پیدا کړه نو دده لپاره دوه اجرونه دي (یو د کوښښ او بل د صحیح حکم) او کله یې چې کوښښ

---

[1] **صحيح مسلم**

[2] **صحيح البخاري**

وکولو بیا د صحیح حکم په را پیدا کولو کې پاتې راغلو نو دده لپاره یو اجر دی (صرف د کوښښ )

نو پدې حدیث کې هم د یو اجر او دوو اجرونو خبره شوېده ښکاره خبره ده چې الله به دې کس ته په جنت کې د یو اجر او د دوو اجرونو مرتبې ورکوي او دا مرتبې الله په ډېره ښه توګه ور تقسیم کولی شي .

حضرت ابو سعید الخدري فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ يَتَرَاءَيُونَ أَهْلَ الْغُرَفِ مِنْ فَوْقِهِمْ كَمَا يَتَرَاءَيُونَ الْكَوْكَبَ الدُّرِّىَّ الْغَابِرَ فِى الأُفُقِ مِنَ الْمَشْرِقِ أَوِ الْمَغْرِبِ ، لِتَفَاضُلِ مَا بَيْنَهُمْ » . قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ ، تِلْكَ مَنَازِلُ الأَنْبِيَاءِ لاَ يَبْلُغُهَا غَيْرُهُمْ قَالَ « بَلَى وَالَّذِى نَفْسِى بِيَدِهِ ، رِجَالٌ آمَنُوا بِاللَّهِ وَصَدَّقُوا الْمُرْسَلِينَ . [1]

ترجمة : بېشکه جنتیان ښکاره کیږئ د کوټو خاوندانو ته د دوی د پاسه لکه ځلاند ستوری چې په افق کې له مشرق او مغرب نه ښکاره کیږي او دا به په جنتیانو کې په یو بل باندې د بهتري په حساب وي صحابه وو ورته وویل : یا رسول الله ﷺ (چې د ځلانده ستورو په ډول ښکاره کیږي) دا به د انبیاوو مرتبې وي چې بل څوک به ورته نه رسیږي؟ رسول الله ﷺ ورته وویل : نه داسې نه ده بلکه ورته رسیږي زما د په هغه ذات باندې قسم وي چې زما نفس یې په لاس کې دی هغه کسان چې په الله یې ایمان راوړی وي او د پیغمبرانو تصدیق یې کړی وي .

امام قرطبي د جنت د کوټو په اړه فرمایي : واعلم أن هذه الغرف مختلفة في العلو والصفة بحسب اختلاف أصحابها في

[1] صحيح البخاري

الأعمال، فبعضها أعلى من بعض وارفع .[1]

ترجمة : پدې پوه شه چې دا کوټې به مختلفې وي په لوړ والي او نورو صفاتو کې لکه څومره چې ددې کوټو صاحبان په عملونو کې سره مختلف وو ځینې یې لوړي او پورته وي تر نورو نه .

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل :
مَنْ آمَنَ بِاللهِ وَبِرَسُولِهِ وَأَقَامَ الصَّلاَةَ وَصَامَ رَمَضَانَ ، كَانَ حَقًّا عَلَى اللهِ أَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ جَاهَدَ فِى سَبِيلِ اللهِ ، أَوْ جَلَسَ فِى أَرْضِهِ الَّتِى وُلِدَ فِيهَا . فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ أَفَلاَ نُبَشِّرُ النَّاسَ . قَالَ: « إِنَّ فِى الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ أَعَدَّهَا اللَّهُ لِلْمُجَاهِدِينَ فِى سَبِيلِ اللهِ ، مَا بَيْنَ الدَّرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالأَرْضِ ، فَإِذَا سَأَلْتُمُ اللَّهَ فَاسْأَلُوهُ الْفِرْدَوْسَ ، فَإِنَّهُ أَوْسَطُ الْجَنَّةِ وَأَعْلَى الْجَنَّةِ ، أُرَاهُ فَوْقَهُ عَرْشُ الرَّحْمَنِ ، وَمِنْهُ تَفَجَّرُ أَنْهَارُ الْجَنَّةِ .[2]

ترجمة : چا چې په الله او د هغه په رسول باندې ایمان راوړو مونځ یې وکولو او د رمضان روژه یې ونیوله په الله باندې حق لري چې دا به جنت ته ننباسي که د الله په لاره کې جهاد وکوي او که په هغه زمکه کې قرار کیني چې په کومه کې پیدا شوی وو صحابه وو وفرمایل : یا رسول الله ﷺ بیا پدې اړه خلکو ته زیری ورنه کړو؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : بېشکه په جنت کې سل درجې دي الله د هغه کسانو لپاره تیارې کړي دي چې د الله په لاره کې جهاد کوي د دوو درجو په مینځ کې دومره فاصله وي لکه د زمکې او اسمان په مینځ کې چې وي کله چې تاسې له الله نه سوال کولو نو د فردوس جنت سوال ترې وکوئ ځکه دا مینځنی او اعلی جنت دی ماته د هغه په سر باندې د رحمن عرش ښکاره کیږي آو له همده څخه د جنت نهرونه را بهیږي .

1 تفسير القرطبي
2 صحيح البخاري

علماء کرام فرمايي رسول الله ﷺ وفرمايل چې هغه مينځنى جنت دى يعني دا دجنتونو په مينځ کې واقع دى او دا چې هغه اعلى د جنتونو دى د مرتبې په لحاظ فرمايي .

او د همدې حديث په تشريح کې علماء فرمايي چې پدې حديث کې سل درجې د جنت يوازې د مجاهدينو لپاره ذکر کړل شوي دي او دا نه دي ويل شوي چې په جنت کې به سل درجې وي بلکه نورې هم زياتې دي .

## د جنت تر ټولو ښکته مرتبه

په جنت کې تر ټولو نه چې کومه ښکته او ادنى مرتبه وي هغه هم په سلګونو چنده د ټولې دنيا د بادشاهي نه غوره وي او پدې دنيا کې څوک چې د ټولې دنيا واکمن شي او په دنيا کې چې څومره قيمتي شيان دي دا ټول دده شي او دا ټول د خپل خدمت او خپل سهولت لپاره وقف او مصرف کړي بيا هم په جنت کې د يو ادنى جنتي نعمتونه او ژوند ځان ته نشي برابرولى حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إِنَّ أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ مَنْزِلَةً ، مَنْ يَتَمَنَّى عَلَى اللهِ ، فَيُقَالَ لَهُ : ذَلِكَ لَكَ وَمِثْلُهُ مَعَهُ ، وَيُلَقَّنُ كَذَا وَكَذَا ، فَيُقَالَ لَهُ : ذَلِكَ لَكَ وَمِثْلُهُ مَعَهُ ، فَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ الْخُدْرِيُّ : قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: ذَلِكَ لَكَ وَعَشْرَةُ أَمْثَالِهِ .** [1]

ترجمة : په جنت کې تر ټولو نه ښکته مرتبې واله به هغه کس وي چې د الله نه څه تمنا وکوي هغه ته به وويل شي دا کوم شى چې تا غوښتي دا به هم درکړل شي او دومره به نور هم درکړل شي او داسې داسې تلقين به ورته وکول شي (چې دا وغواړي) بيا به ورته وويل شي دا به هم درکړل شي او دومره به نور هم درکړل شي بيا حضرت ابو

---

[1] **مصنف ابن ابي شيبة**

سعید الخدري وفرمایل رسول الله ﷺ فرمایل (ورته به وویل شي) دا به تاته درکړل شي او ددې لس چنده به نور هم درکړل شي .

د حضرت عبید بن عمیر څخه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : إِنَّ أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ مَنْزِلَةً ، لَرَجُلٌ لَهُ دَارٌ مِنْ لُؤْلُؤَةٍ وَاحِدَةٍ ، مِنْهَا غُرَفُهَا وَأَبْوَابُهَا .[1]

ترجمة : بېشکه په جنت کې د ادنی مرتبې خاوند به یو سړی وي چې د هغه به یو کور وي د یوې ملغلرې د هغه ټولې کوټې او دروازې به له همدې ملغلرې څخه وي .

حضرت انس بن مالک فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : إِنَّ أَسْفَلَ أَهْلِ الْجَنَّةِ أَجْمَعِينَ دَرَجَةً لَمَنْ يَقُومُ عَلَى رَأْسِهِ عَشَرَةُ آلَافٍ ، بِيَدِي كُلِّ وَاحِدٍ صَحِيفَتَانِ ، وَاحِدَةٌ مِنْ ذَهَبٍ ، وَالْأُخْرَى مِنْ فِضَّةٍ ، فِي كُلِّ وَاحِدَةٍ لَوْنٌ لَيْسَ فِي الْأُخْرَى مِثْلُهُ ، يَأْكُلُ مِنْ آخِرِهَا مِثْلَ مَا يَأْكُلُ مِنْ أَوَّلِهَا ، يَجِدُ لِآخِرِهَا مِنَ الطِّيبِ وَاللَّذَّةِ مِثْلَ الَّذِي يَجِدُ لِأَوَّلِهَا ، ثُمَّ يَكُونُ ذَلِكَ رِيحَ الْمِسْكِ الْأَذْفَرِ ، لَا يَبُولُونَ ، وَلَا يَتَغَوَّطُونَ ، وَلَا يَتَمَخَّطُونَ ، إِخْوَانًا عَلَى سُرُرٍ مُتَقَابِلِينَ.[2]

ترجمة : بېشکه په جنت کې تر ټولو نه د ښکته مرتبې خاوند به یو سړی وي چې د هغه په سر باندې لس زره خادمان ولاړ وي د هر یو سره به دوه کاسې وي یوه به د سرو زرو او بله به د سپینو زرو وي په هره یوه کې به داسې رنګ خوراک وي چې په بله کې به نه وي د آخرې نه به هم داسې خوراک کوي لکه د اولې نه یې چې کوي د آخرې کاسې خوراک به هم داسې خوند ورکوي لکه د اولې کاسې چې ورکوي بیا به دا د قیمتي مشکو بوی وي دوی به نه بولې کوي ، نه به لوی قضاء حاجت کوي ، نه به یې له پوزې نه څه ګندګي وزي ټول به داسې سره خواږه وي لکه ورونه په

---

1 مصنف ابن ابي شيبة
2 المعجم الاوسط للطبراني

تختونو باندې به ناست وي .

حضرت ثویر فرمايي ماد حضرت ابن عمر څخه واورېدل چې فرمایل یې : إِنَّ أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ مَنْزِلَةً لَمَنْ يَنْظُرُ إِلَى جِنَانِهِ وَأَزْوَاجِهِ وَنَعِيمِهِ وَخَدَمِهِ وَسُرُرِهِ مَسِيرَةَ أَلْفِ سَنَةٍ وَأَكْرَمَهُمْ عَلَى اللَّهِ مَنْ يَنْظُرُ إِلَى وَجْهِهِ غُدْوَةً وَعَشِيَّةً ثُمَّ قَرَأَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ .[1]

ترجمة : بېشکه په جنت کې تر ټولو د ښکته مرتبې خاوند هغه دی چې ګوري خپلو جنتونو ، بيبيانو ، نعمتونو ، خادمانو ، او تختونو ته په اندازه د زرو کلونو د مسافې او الله ته په جنتيانو کې تر ټولو نه معزز هغه کس وي چې هغه ته دا بخت حاصل وي چې هغه په سحر او ماښام کې د الله (بلا کيف) مخ ته ګوري بيا رسول الله ﷺ هغه آيت تلاوت کړو چې الله فرمايي ځينې مخونه به پدې ورځ باندې تازه وي خپل رب ته به کتونکي وي.

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : إِنَّ أَدْنَى أَهْلِ الْجَنَّةِ مَنْزِلَةً الَّذِي لَهُ ثَمَانُونَ أَلْفَ خَادِمٍ ، وَاثْنَانِ وَسَبْعُونَ زَوْجًا ، وَيُنْصَبُ لَهُ قُبَّةٌ مِنْ لُؤْلُؤٍ وَزَبَرْجَدٍ وَيَاقُوتٍ ، كَمَا بَيْنَ الْجَابِيَةِ إِلَى صَنْعَاء .[2]

ترجمة : بېشکه په جنت کې تر ټولو ښکته مرتبه لرونکی به هغه کس وي چې اتيا خادمان به لري او دوه اويا بيبيانې به لري او د هغه لپاره به يوه قبة جوړول کيږي د ملغلرې او زبرجدو او ياقوتو څخه چې دومره به وي لکه د الجابية او صنعاء په مينځ کې ځای چې څومره دی .

---

1 سنن الترمذي

2 صحيح ابن حبان

# د جنت بوی

جنت یو پاک ، زړه را ښکوونکی ، ښکلی او د هرچا خوښېدونکی بوی هم لري او دا هغه بوی دی چې په مختلفو روایاتو کې یې ذکر راغلی دی او مؤمنانو باندې دا بوی ډېر د لرې لرې مسافو څخه هم لګیږي او په احادیثو کې ځینې داسې ګناهونه هم یاد کړل شوي دي چې د هغه ګناه کونکي ته به د جنت بوی نه ور رسیږي حضرت ابو هریره فرمايي رسول الله ﷺ فرمایل : **صِنْفَانِ مِنْ أُمَّتِي لَمْ أَرَهُمَا : قَوْمٌ مَعَهُمْ سِيَاطٌ مِثْلُ أَذْنَابِ الْبَقَرِ يَضْرِبُونَ بِهَا النَّاسَ وَنِسَاءٌ كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ مَائِلاَتٌ مُمِيلاَتٌ رُؤُوسُهُنَّ مِثْلُ أَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ لاَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ ، وَلاَ يَجِدُونَ رِيحَهَا ، وَإِنَّ رِيحَهَا لَتُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ كَذَا وَكَذَا .** [1]

ترجمة : زما د امت نه دوه ډلې دي چې ما نه دي لیدلې یو هغه قوم دی چې په لاسونو کې یې دُرې وي لکه د غوایه لکۍ خلک پرې وهي او بل ښځې دي چې جامې یې آغوستې لکن لوڅې وي سرې ته مائلې وي او داسې ځان ښکاره کوي چې میلان ورته کیږي سرونه یې لکه د بختي اوښانو بوکامونه داسې جوړ کړي وي دوی به جنت ته نه ننوزي او نه به په دوی باندې د جنت بوی لګیږي او بېشکه د جنت بوی له دومره دومره مسافې نه په انسان لګیږي .

په بل حدیث کې رسول الله ﷺ فرمايي : **أَلاَ وَمَنْ قَتَلَ مُعَاهَدًا لَهُ ذِمَّةُ اللَّهِ وَذِمَّةُ رَسُولِهِ حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ رِيحَ الْجَنَّةِ وَإِنْ رِيحَهَا لَتُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ سَبْعِينَ خَرِيفًا .** [2]

ترجمة : خبردار چا چې داسې کس ووژلو چې له هغه سره یې صلح کړې وه او د امن تعهد یې

---

[1] **صحيح مسلم**
[2] **السنن الكبرى للبيهقي**

ورسره کړی وو هغه د الله او د هغه د رسول ﷺ په ذمه واري کې دی الله به په هغه باندې د جنت بوی حرام کړي او بېشکه د جنت بوی د اویا منیو له مسافي نه لګیږي .

په بل روایت کې حضرت ابي بکرة فرمايي رسول الله ﷺ فرمایل : مَنْ قَتَلَ نَفْسًا مُعَاهَدَةً بِغَيْرِ حَقِّهَا حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ أَنْ يَشُمَّ رِيحَهَا.[1]

ترجمة : چاچې داسې نفس قتل کړو چې له هغه سره دده تعهد او تړون شوی وو بغیر د حق نه الله به په ده باندې د جنت بوی هم حرام کړي .

په بل روایت کې حضرت ابي بکرة فرمايي رسول الله ﷺ فرمایل : مَنْ قَتَلَ نَفْسًا مُعَاهَدَةً بِغَيْرِ حَقِّهَا لَمْ يَرَحْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ ، وَإِنَّ رِيحَ الْجَنَّةِ لَيُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ مِائَةِ عَامٍ.[2]

ترجمة : چا چې داسې نفس قتل کړو چې دده ورسره عهد وو بغیر د حق نه هغه ته به د جنت بوی هم ور ونه رسیږي او بېشکه د جنت بوی د سلو کالو په مسافه کې په انسان لګیږي .

د مجاهد ابي الحجاج څخه روایت دی هغه فرمايي رسول الله ﷺ فرمایل : ثَلاثَةٌ لَا يَجِدُونَ رِيحَ الْجَنَّةِ ، وَإِنَّ رِيحَهَا لَتُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ خَمْسِمِائَةِ عَامٍ : الْعَاقُّ لِوَالِدَيْهِ ، وَمُدْمِنُ الْخَمْرِ ، وَالْبَخِيلُ الْمَنَّانُ.[3]

ترجمة : درى کسان دي چې په هغوی باندې به د جنت بوی نه لګیږي او د جنت بوی د پنځو سوو کلونو په مسافه کې لګیږي ۱. هغه چې مور پلار یې عاق کړي ۲. د شرابو معتاد ۳. احسان

[1] **صحيح ابن حبان**
[2] **صحيح ابن حبان**
[3] **تهذيب الآثار للطبري**

باروونکی بخیل .

حضرت جابر فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **ريح الجنة يوجد من مسيرة ألف عام والله لا يجدها عاق، ولا قاطع رحم، ولا شيخ زان، ولا جار إزاره خيلاء .**[1]

ترجمة : د جنت بوى د زرو كلونو له مسافې نه لګيږي و الله هغه كس به يې حس نه كړي چې هغه د خپلولي پرې كوونكى وي ، او نه زوړ زنا كار ، او نه هغه چې د كبر نه خپله جامه اوږده جوړوي او بيا يې په ځان پسې كش كوي .

په پورتنيو احاديثو كې مختلف عددونه راغلي دي ځينې علماء فرمايي ددې مطلب خاص شمار ښكاره كول نه دي بلكه دا ښكاره كول دي چې د ډېر لرې ځاى نه د جنت بوى محسوس كېدلى شي او ځينې علماء فرمايي تر حالاتو او انسانانو پورې او په دنيا كې د هغوى تر عملونو پورې فرق كوي په چا باندې به د ځومره مسافې نه لګيږي او په چا باندې د ځومره نو تول عددونه په خپل ځاى كې صحيح دي .

[1] الطبراني

# د جنت دروازې

د جنت لپاره دروازې هم شته چې په قرآن كريم او په مختلفو احاديثو كې يې ذكر راغلى دى د مثال په ډول الله فرمايي : **جَنَّاتِ عَدْنٍ مُّفَتَّحَةً لَّهُمُ الأَبْوَابُ .** [1]

ترجمة : جنتونه دي د همېشه هستوګنې په دې حال كې چې تل پرانستلې وي دوى ته دروازې (د جنتونو) .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ ، إِنَّ مَا بَيْنَ الْمِصْرَاعَيْنِ مِنْ مَصَارِيعِ الْجَنَّةِ لَكَمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَهَجَرَ ، أَوْ كَمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَبُصْرَى.** [2]

ترجمة : بېشكه د جنت د دروازو د دوو پلو په مينځ كې دومره فاصله ده لكه د مكې او هجر په مينځ كې او يا لكه د مكې او بصرې په مينځ كې .

مخكې تېر شول چې دا خبره رسول الله ﷺ په هغه وخت كې كړې وه چې د مسافو د اندازې لپاره داسې آلات موجود نه وو لكه اوس چې په نوي عصر كې وجود لري نو كله چې په اوس وخت كې پدې دوو فاصلو باندې تحقيق او څېړنه وشوه نو تحقيق ثابته كړه چې د مكي او دهجر په مينځ كې چې څومره فاصله ده بعينه همدا فاصله د مكې او بصرې په مينځ كې هم ده نو مسلمانان خو پدې يقين لري چې رسول الله ﷺ په رښتيا پيغمبر وو او الله به ورته دا علم وركړى وي او د كفارو لپاره اوس هم د حيرانتيا خبره ده چې څوارلس سوه كاله مخكې پداسې حال كې چې رسول الله ﷺ

---

1 سورة ص آية ٥٠
2 صحيح ابن حبان

سفرکوونکی تاجر هم نه وو دا فاصله ده ته ځنګه داسې په دقیقه توګه معلومه وه .

حضرت حکیم بن معاویة له خپل پلار نه روایت کوي هغه فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : مَا بَيْنَ مِصْرَاعَيْنِ مِنْ مَصَارِيعِ الْجَنَّةِ مَسِيرَةُ سَبْعِ سِنِينَ .[1]

ترجمة : د جنت د دروازو د دوو پلو په مینځ کې دومره مسافه ده لکه په اندازه د اوو کلونو سفر .

حضرت سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ له رسول الله ﷺ څخه روایت کوي چې هغه ﷺ فرمایل فِى الْجَنَّةِ ثَمَانِيَةُ أَبْوَابٍ ، فِيهَا بَابٌ يُسَمَّى الرَّيَّانَ لاَ يَدْخُلُهُ إِلاَّ الصَّائِمُونَ .[2]

ترجمة : په جنت کې آته دروازې دي په هغې کې یوه دروازه ده باب الریان ورته ویل کیږي په هغې به صرف روژه داران ننوزي .

حضرت ابو هریره فرمایي ما د رسول الله ﷺ څخه واوریدل چې هغه فرمایل : مَنْ أَنْفَقَ زَوْجَيْنِ مِنْ شَيْءٍ مِنَ الأَشْيَاءِ فِي سَبِيلِ اللهِ دُعِيَ مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ : يَا عَبْدَ اللهِ ، هَذَا خَيْرٌ ، وَلِلْجَنَّةِ أَبْوَابٌ ، فَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصَّلاَةِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّلاَةِ ، وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجِهَادِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الْجِهَادِ ، وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصَّدَقَةِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّدَقَةِ ، وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصِّيَامِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الرَّيَّانِ قَالَ : فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ : يَا رَسُولَ اللهِ ، مَا عَلَى أَحَدٍ يُدْعَى مِنْ تِلْكَ الأَبْوَابِ مِنْ ضَرُورَةٍ ، هَلْ يُدْعَى مِنْهَا كُلُّ أَحَدٍ يَا رَسُولَ اللهِ ؟ قَالَ : نَعَمْ وَأَرْجُو أَنْ تَكُونَ مِنْهُمْ .[3]

ترجمة : څوک چې خیرات کړي یوه جوړه د هرشي څخه چې وي د الله په لاره کې نو د جنت له دروازو

[1] صحيح ابن حبان
[2] صحيح البخاري
[3] صحيح ابن حبان

به ور وغوښتل شي ورته اواز به کيږي اې عبد الله دا ستا لپاره خير دی او دجنت لپاره دروازې دي څوک چې ښه او ډېر مونځونه کوي نو د مانځه له دروازې به ور وغوښتل شي او څوک چې مجاهد وي نو د جهاد له دروازې به ور وغوښتل شي څوک چې صدقه کونکي وي نو د صدقې له دروازې به ور وغوښتل شي څوک چې روژه نيونکی وي نو د الريان دروازې به ور وغوښتل شي حضرت ابوبکر وفرمايل يا رسول الله ﷺ په يو کس خو ددې مزاحمت نشته که هغه ددې دروازو څخه ور غوښتل کيږي داسې څوک به وي چې د هغی ټولو نه به ورغوښتل کيږي يا رسول الله ﷺ ؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : هو او زما دا اميد دی چې ته به له هغوی څخه وې .

په پورتني حديث کې چې رسول الله ﷺ فرمايي ( **فِي سَبِيلِ اللَّهِ** ) ځينې علماء فرمايي ددې معنی داده چې په کوم نېک کار کې او ځينې علماء فرمايي چې ددې مطلب دادی چې په جهاد کې لکن اکثرو علماوو اوله رايه خوښه کړېده.

په مخکني حديث کې تېر شول چې د جنت آته دروازې دي امام ابن حجر فرمايي پدې پورتني حديث کې څلور يادې کړل شوي دي نو د حج ارکان پاتې دي بېشکه چې د حاجيانو لپاره خپله بېله دروازه ده او په پاتې نورو دريو کې يوه د عفوې دروازه ده هغه چې خلکو ته بښنه کوي يو حديث دی چې امام احمد له عبادة بن اشعث څخه مرسل روايت کړی دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي **إِنَّ لِلَّهِ بَابًا فِي الْجَنَّةِ لَا يَدْخُلُهُ إِلَّا مَنْ عَفَا عَنْ مَظْلِمَةٍ** . [1]

ترجمة : بېشکه د جنت يوه دروازه ده له هغې

---

[1] **مسند امام احمد**

نه به جنت ته هغه کسان ننوزي چې په هغه باندې ظلم وشي هغه بښنه کوي .

او یوه بله دروازه ده چې باب الایمن ورته ویل کیږي هغه د متوکلینو دروازه ده او له هغې دروازې نه به خلک جنت ته بې حسابه ننوزي د سنن الترمذي په یو حدیث کې راغلي دي چې یوه دروازه د باب الذکر په نوم هم ده او علماء فرمایي چې یوه دروازه به باب العلم وي .

ځینې علماء بیا فرمایي دا د جنت آته دروازې دي او ددې معنی دا نه ده چې هرې نیکي او هر عمل ته بېله دروازه وي ځکه نېک عملونه خو بیا زیات دي او دا دروازې صرف آته دي **وَاللَّهُ أَعْلَمُ** .[1]

پدې اړه امام قرطبي فرمايي **فذكر الترمذي الحكيم أبو عبد الله أبواب الجنة في نوادر الأصول فذكر باب محمد ﷺ ، وهو باب الرحمة ، وهو باب التوبة ، فهو منذ خلقه الله مفتوح لا يغلق ، فإذا طلعت الشمس من مغربها أغلق فلم يفتح إلى يوم القيامة ، وسائر الأبواب مقسومة على أعمال البر . فباب منها للصلاة ، وباب للصوم ، وباب للزكاة و الصدقة ، وباب للحج ، وباب للجهاد ، وباب للصلة ، وباب للعمرة ، فزاد باب الحج ، وباب العمرة ، و باب الصلة ، فعلى هذا أبواب الجنة أحد عشر باباً .**[2]

ترجمة : حکیم ترمذي ابو عبد الله په نوادر الاصول کې د جنت دروازې یادې کړې دي ویلي یې دي چې یوه باب محمد ﷺ ده ، باب الرحمة ده ، باب التوبة ده دا له کومې ورځې چې الله پیدا کړېده خلاصه ده بندیږي نه کله چې لمر له مغرب څخه را وخیږي بیا به بنده شي بیا تر قیامته پورې نه خلاصیږي نورې ټولې دروازې په نیکو عملونو باندې تقسیم شوي دي یوه پکې باب الصلاة ده ، باب الصوم ده ، باب الزکاة و الصدقة ده

---

[1] **فتح الباري**
[2] **تفسير القرطبي**

، باب الحج ده ، باب الجهاد ده ، باب الصلة ده ، باب العمرة ده پدې روايت کې هغه باب الحج ، باب العمرة ، باب الصلة زياتې کړې نو پدې حساب سره د جنت دروازې يولس شوې .

## د جنت کيلي

په هر ځای کې چې دروازه وي نو خامخا هغه ددې لپاره وي چې کله به بنديږي او چې ضرورت شي نو هغه به خلاصول کيږي داسې د جنت هم دروازې دي هغه د ټولو خلکو لپاره بندې دي صرف هغه څوک به ورتلی شي چې د دې دروازي کيلي ورسره وي او د جنت د دروازې کيلي په اخلاص سره د شهادت کلمه ويل دي حضرت معاذ بن جبل فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **مفتاح الجنة شهادة أن لا إله إلا الله** .[1]

ترجمة : د جنت کيلي ددې ګواهي ورکول دي چې نشته په حقه معبود مګر يوازې الله دی .

د لوی ولی الله بزرګ حضرت وهب بن منبه نه پوښتنه وشوه : ولې دا **لا اله الا الله** ويل د جنت کلي نه ده؟ (د پوښتنې کونکي مطلب دا وو چې دا څوک ووايي نو هغه به جنت ته نه ځي؟) حضرت وهب بن منبه ورته وويل : **بلى ولكن ليس من مفتاح إلا له أسنان فإن أتيت بمفتاح له أسنان فتح لك وإلا لم يفتح** (هو لکن هره کلی چې وي د هغې لپاره غاښونه وي که د داسې کيلي راوړه چې د هغې غاښونه وو نو درته خلاصه به شي او کنه نو درته به نه خلاصيږي) د وهب بن منبه مطلب دا وو چې پدې باندې د زړه نه يقين او ددې په مقتضياتو باندې عمل کول لدې کلمې سره ضروري دي .

امام ابن قيم فرمايي : الله د هر مطلوب لپاره

---

[1] **رواه الامام احمد**

يـوه كـيـلـي پـيـدا كـړيـده چې هغه وربـانـدې خلاصيږي نـو د مـانـځـه كـيـلـي يـې پـاكـي ګـرځـولـې ده لـكـه رسول الله ﷺ چې فـرمـايـي : د مـانـځـه كـيـلـي پـاكـي ده ، د حج كـيـلـي احرام دى ، د نـيـكـي كـيـلـي رښـتـيـا ويـل دي ، د جنت كـيـلـي تـوحـيـد دى ، د علم كـيـلـي پـه ښه تـوګـه پـوښـتـنـه كـول دي او پـه ښه تـوګـه آوريـدل دي ، د كـامـيـابـي كـيـلـي صبر دى ، د زيـاتـوالـي كـيـلـي شكر دى ، د ولايت كـيـلـي محبت دى ، د محبت كـيـلـي ذكـر دى ، د كـامـيـابـي كـيـلـي تـقـوى ده ، د تـوفـيـق كـيـلـي رغبت او رهبت (تـمـه او ويـره ) ده ، د قـبـول كـيـلـي دعـاء ده ، د ايـمـان كـيـلـي پـه هغه څه كې فـكـر كـول دي چې الله خلـك د هغې پـه اړه فـكـر كـولـو تـه ور غوښتي دي، الله تـه د نـزديـكـت كـيـلـي د زړه سلامـتـيـا ده او د هغه سره پـه محبت كې اخلاص كـول دي ، د زړه د ژنـدي كـولـو كـيـلـي د قـرآن كـريـم تـلاوت دى او د شپې پـه آخره بـرخـه كې دعا ګـانـې كـول دي او ګـنـاهـونـه پـرېـښـودل دي ، د رحمت د حاصلـولـو كـيـلـي پـه سمه تـوګـه د خالـق عبـادت اومخلـوق تـه پـه فـايـده رسولـو كې كـوښښ كـول دي ، د رزق د حاصلـولـو كـيـلـي تـقـوى او استغفـار دى ، د عزت كـيـلـي د الله او د هغه د رسول اطاعت كـول دي ، آخرت تـه د ځان د تـيـارولـو كـيـلـي لـه دنـيـا څخه خپل اميدونـه ختمول دي ، او د هر خير كـيـلـي د آخرت پـه كـار كې كـوښښ كـول دي ، د هر شر كـيـلـي پـه دنـيـا كې خپل زړه لـګـول دي .[1]

## د جنـتـيـانـو استقـبـال

كـلـه چې د جنـتـيـانـو او دوزخيـانـو پـه مـيـنځ كې فـيـصلـه وشي هغه بـخـتـور كـسان چې د جنت مستحقـيـن شوي وي پـه خوشحالـي سره بـه د جنت لـوري تـه روان شي ملائـكې او د جنت سـاتـونـكې بـه ددې مسلمـانـانـو استقـبـال او هركـلـى كـوي الله د هغه حالـت مـونږ تـه

---

[1] حادى الارواح

داسې بیانوي او فرمایي : وَسِيقَ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ إِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا حَتَّى إِذَا جَاءُوهَا وَفُتِحَتْ أَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلَامٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوهَا خَالِدِينَ . [1]

ترجمة : او بېول کیږي به هغه کسان چې وېرېدل به دوی له ربه خپله طرف د جنت ته ډلې ډلې تر هغه پورې چې راشي دوی جنت ته حال دا چې پرانیستلی شوې به وي دروازې د دغه (جنت) او وبه وايي دوی ته خزانچیان (متصرفان) د جنت سلام د وي پر تاسې پاک یئ تاسې (له ګناهونو) پس ننوځئ جنت ته په دې حال کې چې همېشه اوسېدونکي اوسئ (په ده کې) .

وَالْمَلَائِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِمْ مِنْ كُلِّ بَابٍ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ.[2]

ترجمة : او فرښتې به ور ننوزي پر دوی (سره له تحائفو او زیري او رضوان) له هرې دروازې (مانیو د دوی ته او ورته به وايي چې) سلامتیا د وي پر تاسې په سبب د صبر کولو ستاسې (په طاعت او مصیبت او له معصیته) نو ښه عاقبت د دار (د آخرت عاقبت د تاسې دی) .

لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْأَكْبَرُ وَتَتَلَقَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ هَذَا يَوْمُكُمُ الَّذِي كُنْتُمْ تُوعَدُونَ . [3]

ترجمة : نه به خفه (غمجن) کوي دوی (جنتیان) وېره ډېره لویه (هم لکه آخره نفخه او د دوزخ خوا ته روانېدل) او ملاقات به کوي له دوی سره پرښتې (او ورته وايي به) دا ورځ د (ثواب د) ستاسې ده هغه چې وئ تاسې چې وعده درسره کړل شوې وه (په د نیا کې) .

يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ يَسْعَى نُورُهُمْ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِمْ بُشْرَاكُمُ الْيَوْمَ

---

1 سورة الزمر آية ٧٣
2 سورة الرعد آية ٢٣-٢٤
3 سورة الانبياء اية ١٠٣

جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ .[1]

ترجمة : (ياده كړه اى محمده!) هغه ورځ (د قيامت) چې وينى ته مؤمنان سړى او مؤمنانې ښځې چې ځغلي به رڼا (رڼرا) د دوى مخکې له دوى څخه او له ښي خوا د دوى څخه. (او وبه ويل شي دوى ته چې) زيرى د تاسې نن ورځ دي (ننوتل په) جنت چې بهيږى له لاندې (د مانيو او ونو) د هغو (څلور قسمه) ويالې تل به وي دوى په هغو کې دغه دى هم دغه برى موندل ډير لوى.

[1] سورة الحديد آية ١٢

# جنت ته ننوتل

کله چې د جنتیانو او دوزخیانو په مینځ کې فیصله وشي هغه کسان چې جنتیان دي کله چې جنت ته ځي تر هغې وړاندې به د دوی په مینځونو کې قصاص وشي او که په یو بل یې څه ډول حقونه وي هغه به سره خلاص کړي او بیا چې کله جنت ته لاړ شي نو په جنت کې به دوی داسې بلد وي لکه څوک چې په دنیا کې په خپل کور کې بلد وي بلکه تردې هم ښه الله فرمایي : وَالَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَلَن يُضِلَّ أَعْمَالَهُمْ (4) سَيَهْدِيهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ (5) وَيُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ (6) . [1]

ترجمة : او هغه کسان چې وژل شوي دي په لاره د الله کې پس له سره به ضائع نه کړي الله عملونه د دوی زر به سمه لیاره وښیي دوی ته (الله په دنیا او په آخرت کې( او ښه به کړي حال ددوی (په دارینو کې) او داخل به کړي (الله ) دوی په جنت کې چې معلوم کړی دی (الله ) دغه (جنت) دوی ته .

إِذَا خَلَصَ المُؤْمِنُونَ مِنَ النَّارِ حُبِسُوا بِقَنْطَرَةٍ بَيْنَ الجَنَّةِ وَالنَّارِ، فَيَتَقَاصُّونَ مَظَالِمَ كَانَتْ بَيْنَهُمْ فِي الدُّنْيَا حَتَّى إِذَا نُقُّوا وَهُذِّبُوا، أُذِنَ لَهُمْ بِدُخُولِ الجَنَّةِ، فَوَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ، لَأَحَدُهُمْ بِمَسْكَنِهِ فِي الجَنَّةِ أَدَلُّ بِمَنْزِلِهِ كَانَ فِي الدُّنْيَا. [2]

ترجمة : کله چې مؤمنان له اور نه خلاص شي نو د جنت او اور په مینځ کې حصار کړل شي د دوی په مینځ کې به د هغو ظلمونو قصاصونه سره واخیستل شي چې په دنیا کې وو تردې چې دوی پاک شي نو دوی ته به اجازه وشي چې جنت ته ننوزي زما د قسم په هغه ذات وي چې د محمد نفس یې په لاس کې دی په دوی کې به یو په خپل هستوګنځي په جنت کې په دنیا کې تر خپل کور نه ډیر ښه بلد وي .

---

[1] سورة محمد

[2] أخرجه البخاري

# جنت ته به اول څوک ځي ؟

على الاطلاق جنت ته اول ننوتونكى حضرت محمد ﷺ دى د ټولو خلكو نه به وړاندې جنت ته ننوزي او په امتونو كې هم د رسول الله ﷺ امت دى چې جنت ته به ننوزي او ددې امت په سر كې به حضرت ابو بكر صديق وي حضرت انس بن مالک فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **أَنَا أَكْثَرُ الأَنْبِيَاءِ تَبَعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ ، وَأَنَا أَوَّلُ مَنْ يَقْرَعُ بَابَ الْجَنَّةِ** . [1]

ترجمة : د قيامت په ورځ به تر هر چا نه زما متابعت كونكي ډير وي او زه به اول هغه كس وم چې د جنت دروازه به ور ټكوم .

په بل حديث كې حضرت انس بن مالک فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **آتِى بَابَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَأَسْتَفْتِحُ فَيَقُولُ الْخَازِنُ مَنْ أَنْتَ فَأَقُولُ مُحَمَّدٌ. فَيَقُولُ بِكَ أُمِرْتُ لاَ أَفْتَحُ لأَحَدٍ قَبْلَكَ** . [2]

ترجمة : زه به د جنت دروازې ته د قيامت په ورځ راشم زه به وغواړم چې دروازه راته خلاصه شي د جنت په دروازه باندې مقرر شوې فرښته به ماته ووايي څوک يې؟ زه به ورته ووايم محمد هغه به راته ووايي : ماته همداسې امر شوى وو چې ستا نه مخكې يې چا ته خلاصه نه كړم .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **نَحْنُ الآخِرُونَ الأَوَّلُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَنَحْنُ أَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ بَيْدَ أَنَّهُمْ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِنَا وَأُوتِينَاهُ مِنْ بَعْدِهِمْ فَاخْتَلَفُوا فَهَدَانَا اللَّهُ لِمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ مِنَ الْحَقِّ فَهَذَا يَوْمُهُمُ الَّذِى اخْتَلَفُوا فِيهِ هَدَانَا اللَّهُ لَهُ - قَالَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ - فَالْيَوْمُ لَنَا وَغَدًا**

---

1 **صحيح مسلم**
2 **صحيح مسلم**

لِلْيَهُودِ وَبَعْدَ غَدٍ لِلنَّصَارَى .[1]

ترجمة : مونږ وروستني او اولني یو د قیامت په ورځ او مونږ هغه څوک یو چې اول به جنت ته ننوزو صرف داده چې دوی ته کتاب زمونږ نه وړاندې ورکړل شوی وو او مونږ ته د دوی نه وروسته را کړل شوی وو دوی اختلاف وکولو او الله مونږ ته هدایت وکولو په هغه څه کې چې دوی پکې اختلاف کاوه له حق نه او دا هغه ورځ ده چې دوی پکې اختلاف وکا او الله یې مونږ ته هدایت وکولو ویل د جُمعې ورځ (یهودو د شنبې ورځ مقدسه وګڼله او نصاراوو د یکشنبې او حق دا وو چې د جُمعې ورځ غوره ده) نو نن زمونږ ورځ ده (جُمعه) سبا د یهودو او بله ورځ د نصاراوو ده .

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : أَتَانِى جِبْرِيلُ فَأَخَذَ بِيَدِى فَأَرَانِى بَابَ الْجَنَّةِ الَّذِى تَدْخُلُ مِنْهُ أُمَّتِى . فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ يَا رَسُولَ اللهِ وَدِدْتُ أَنِّى كُنْتُ مَعَكَ حَتَّى أَنْظُرَ إِلَيْهِ . فَقَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ أَمَا إِنَّكَ يَا أَبَا بَكْرٍ أَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِى .[2]

ترجمة : ماته جبریل راغلو زه یې تر لاس ونیولم ماته یې هغه دروازه را ښکاره کړه چې له کومې نه به زما امتیان جنت ته ننوزي حضرت ابو بکر صدیق وویل یا رسول الله ﷺ کاش زه هم لتا سره وای چې ما دا دروازه لیدلې وای رسول الله ﷺ وفرمایل : او ته اې ابابکره اول هغه کس به وې چې زما له امت څخه جنت ته ننوزي .

حضرت عبد الله بن عمر فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : هَلْ تَدْرُونَ مَنْ أَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ خَلَقِ اللهِ ؟ قَالُوا : اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ ،

---

[1] صحيح مسلم
[2] سنن ابي داود

قَالَ : أَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ خَلَقِ اللهِ الْفُقَرَاءُ الْمُهَاجِرُونَ الَّذِينَ يُسَدُّ بِهِمُ الثُّغُورُ ، وَتُتَّقَى بِهِمُ الْمَكَارِهُ ، وَيَمُوتُ أَحَدُهُمْ ، وَحَاجَتُهُ فِي صَدْرِهِ لاَ يَسْتَطِيعُ لَهَا قَضَاءً ، فَيَقُولُ اللَّهُ لِمَنْ يَشَاءُ مِنْ مَلاَئِكَتِهِ : إِيتُوهُمْ فَحَيُّوهُمْ ، فَيَقُولُ الْمَلاَئِكَةُ : رَبَّنَا نَحْنُ سُكَّانُ سَمَاوَاتِكَ ، وَخِيرَتُكَ مِنْ خَلْقِكَ أَفَتَأْمُرُنَا أَنْ نَأْتِيَ هَؤُلاَءِ ، فَنُسَلِّمَ عَلَيْهِمْ ، قَالَ : إِنَّهُمْ كَانُوا عِبَادًا يَعْبُدُونِي لاَ يُشْرِكُونَ بِي شَيْئًا ، وَتُسَدُّ بِهِمُ الثُّغُورُ ، وَتُتَّقَى بِهِمُ الْمَكَارِهُ ، وَيَمُوتُ أَحَدُهُمْ ، وَحَاجَتُهُ فِي صَدْرِهِ لاَ يَسْتَطِيعُ لَهَا قَضَاءً ، قَالَ : فَتَأْتِيهِمُ الْمَلاَئِكَةُ عِنْدَ ذَلِكَ ، فَيَدْخُلُونَ عَلَيْهِمْ مِنْ كُلِّ بَابٍ : سَلاَمٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ . [1]

ترجمة : آيا تاسو پوهېږئ چې د الله په مخلوق کې به اول جنت ته څوک ننوزي؟ صحابه وو ورته وويل : الله او د هغه رسول پرې ښه پوهيږي رسول الله ﷺ وفرمايل : اول چې په ټول مخلوق کې جنت ته ننوزي هغه به هغه فقيران مهاجرين وي چې په هغوى به لارې بندېدلې او مشکلات به پرې راتلل په هغوى کې به يو پداسې حالت کې مړ کېدو چې په زړه کې به يې لوى ارمان وو خو د هغه ارمان د پوره کولو لپاره به يې لاره نه پيدا کوله (کله چې دوى جنت ته ننوزي) الله به ځينې فرښتو ته ووايي ورشئ هغوى ته سلام واچوئ ملائکې به ورته ووايي اې زمونږ ربه مونږ ستا د اسمان اوسيدونکي وو او ستا په مخلوق کې غوره مخلوق وو اوس ته مونږ ته امر کوې چې هغوى ته ورشو او سلام پرې واچوو؟ الله به ورته ووايي : دوى زما داسې بندګان وو چې زما عبادت به يې کاوه او لما سره به يې شريک نه منلو په دوى به لارې بندېدلې او تکليفونه به پرې ورو وستل کېدل او يو کس د دوى به پداسې حالت کې مړ کېدو چې په زړه به يې ارمان پروت وو او هغه به يې نشواى پوره کولى رسول الله ﷺ وفرمايل : بيا به فرښتې هغوى ته ورشي او له هرې دروازې به هغوى ته ور ننوزي وايي به په تاسې د سلام وي په هغه څه چې

[1] صحيح ابن حبان

تاسي صبر وکا ډېر ښه دی ستاسې لپاره دا دار د عقبی .

## وخت په جنت کې

په جنت کې به کله هم تیاره نه راځي هلته به هر وخت رڼا وي خو الله بیا هم په قرآن کریم کې فرمایلي دي وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَعَشِيّاً (یعني جنتیانو ته به د دوی خوراکونه په سحر او بیګاه کې ورکول کیږي) امام قرطبي فرمایي چې ددې معنی داده چې دوی ته به خوراک ورکول کیږي او په مینځ کې به دومره وخت دوی ته ورکول کیږي لکه چې صبا او بیګاه شي او ددې معنی دا نه ده چې په دوی باندې به تیاره راځي او بیا به لکه د سحر رڼا راځي حضرت ابن عباس پدې آیت کې الله خلکو ته د جنتیانو په ژوند کې یو سهولت ور ښکاره کوي چې په هغه وخت کې چې کله قرآن کریم نازلېدو نو د عربو لپاره به ډېره د مزې خبره داوه چې دوی ته په سحر او ماښام کې د دوی خوراک په سمه توګه ور رسېدو حضرت یحی بن ابي کثیر فرمایي : **كانت العرب في زمانها من وجد غداء وعشاء معاً فذلك هو الناعم؛ فنزلت** (په عربو کې د قرآن کریم د نزول په وخت کې حالات داسې وو چې چا به د سحر او ماښام خواړه په یو وخت له ځان سره لرل نو همدا کس به په نعمت کې ګڼل کېدو) نو بیا دا آیت نازل شو چې جنتیانو ته به د سحر او ماښام خوراک ورکول کیږي .

جنتیانو ته به په هېڅ وخت کې د هېڅ شي کمی نه وي خو پدې دوو وختونو کې به دوی ته په منظمه توګه خوراک ورکول کیږي چې ددوی د لذاتو او خوندونو حالتونه ورته بدل کړي او له یو حال نه بل حال ته انتقال وکوي .

يو وخت رسول الله ﷺ ته يو كس راغلو ورته يې وويل : يا رسول الله هل في الجنة من ليل؟ قال : «وما هيّجك على هذا» قال : سمعت الله تعالى يذكر في الكتاب {وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَعَشِيّاً } فقلت : الليل بين البكرة والعشي . فقال رسول الله ﷺ : «ليس هناك ليل إنما هو ضوء ونور يردُّ الغدوّ على الرواح والرواح على الغدوّ وتأتيهم طُرَف الهدايا من الله تعالى لمواقيت الصلاة التي كانوا يصلون فيها في الدنيا وتسلم عليهم الملائكة .[1]

ترجمة : يا رسول الله ﷺ په جنت كې به شپه وي؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : ددې پوښتنه د ولې وكوله؟ هغه كس ورته وويل : ځكه ما واورېدل چې الله په قرآن كريم كې ذكر كړي دي چې دوى ته به د دوى خوراک په سحر او ماسختن كې وركول كيږي نا ما وويل چې شپه خو د ماسخوتن او سحر وختي په مينځ كې وي رسول الله ﷺ ورته وويل : هلته به شپه نه وي بلكه رڼا به وي چې شپه او ورځ به موجود وي او جنتيانو ته به د الله له لوري تحفې راځي د مانځه په وختونو كې چې په كومو كې به دوى مونځونه كول او په دوى باندې به ملا ئک سلام وايي .

امام قرطبي فرمايي : علماء فرمايي په جنت كې به شپه او ورځ نه وي بلكه هلته به همېشه رڼا وي دوى به د شپې او د ورځې مقدار لدې څخه پېژني چې كله د شپې وخت كيږي پردې به را ښكته كيږي دروازې به بنديږي او كله چې د ورځې وخت كيږي نو پردې به پورته كيږي او دروازې به خلاصيږي دا خبرې ابوالفرج الجوزي او المهدوي او نورو ذكر كړي دي .[2]

امام طبري فرمايي چې د جنتيانو په اړه

[1] نوادر الاصول
[2] تفسير القرطبي

فرمايي وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَعَشِيًّا ددې مطلب دادی چې دوی ته به د دوی خوراکونه ورکول کیږي او هغه څه ورکول کیږي چې د دوی ورته زړه کیږي په دومره وخت کې لکه د سحر او ماسخوتن وخت کې چې وو په دنیا کې یعني د دوی د یو وخت او د بل وخت د خوراکونو په مینځ کې به دومره وخت ورکول کیږي لکه په دنیا کې به چې د دوی د خوراکونو په مینځ کې وو او دا مطلب یې څکه دی چې په جنت کې شپه او ورځ نشته .[1]

امام قتادة فرمايي الله چې د جنتیانو په اړه فرمایلي دي وَلَهُمْ رِزْقهمْ فِيهَا بُكْرَة وَعَشِيًّا (جنتیانو ته به د دوی رزق ورکول کیږي په سحر او ماسختن کې) دا بکرة او عشیا په جنت کې دوه ساعتونه دي څکه هلته خو شپه نشته هلته هر وخت رڼا او نور وي .[2]

امام ابن کثیر فرمایي هلته به جنتیانو ته خوراکونه تر دومره فاصلې وروسته راوړل کیږي لکه په دنیا کې چې د دوی د خوراکونو په مینځ کې څومره وخت وو او مطلب یې دا نه دی چې هلته به هم شپه راځي او بیا به ورځ راځي بلکه هلته به هر وخت نور وي دوی به شپه او ورځ په رڼا سره پیژني او وخت به هم په همدې سره پیژني چې رڼا به تغیر خوري .

## د جنت نعمتونه

الله په جنت کې جنتیانو ته ډول ډول نعمتونه تیار کړي دي او بیا ددې لپاره چې خلک داسې عملونه وکوي چې ددې قابل شي چې هغه نعمتونه دوی ته ورکړل شي الله په قرآن کریم او رسول الله

1 **تفسير الطبري**
2 **تفسير الطبري**

ﷺ په احاديثو کې بيان کړي دي د مثال په ډول الله فرمايي : وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الأَنْهَارُ كُلَّمَا رُزِقُوا مِنْهَا مِنْ ثَمَرَةٍ رِزْقًا قَالُوا هَذَا الَّذِي رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ وَأُتُوا بِهِ مُتَشَابِهًا وَلَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُطَهَّرَةٌ وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ [1]

ترجمة : او زيرى وركړه (اې محمده ﷺ) هغو کسانو ته چې ايمان ئې راوړى دى (په ټولو مؤمن به شيانو) او کړي ئې دي ښه (عملونه) په دې چې بېشکه دوى ته جنتونه دي چې بهيږي لاندې (تر ما نيو او ونو) د هغو ويالې هر کله چې روزي ورکړه شي دغو (جنتيانو) ته له جنتونو څخه مېوه لپاره د خوړلو نو وايي دا (جنتيان) دا همغسې مېوه ده چې راکړې شوې وه مونږ ته پخوا له دې نه او رابه وړه شي دوى ته مېوه هم رنګه (او په خوند کې سره بدله) او وي به دوى ته په دغو (جنتونو) کې ښځې ښې پاکې او دوى به وي په دغو (جنتونو) کې همېشه .

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا لَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُطَهَّرَةٌ وَنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيلًا . [2]

ترجمة : او هغه کسان چې ايمان ئې راوړى دى او کړي ئې دي ښه (عملونه) زر به ننه باسو مونږ دوى په (هغو) جنتونو کې چې بهيږي له لاندې د (مانيو او ونو) د دوى ويالې همېشه وي به دوى په دغو جنتونو کې تل (بې انتها او بلا انقطاع) وي به دوى ته په دې جنتونو کې ښځې پاکې کړل شوې (له ټولو ناپاکيو څخه) او ننه به باسو مونږ دوى په ګڼو سيورو (په دائمي نعمت او راحت) کې .

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ادْخُلُوهَا بِسَلاَمٍ آمِنِينَ وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ

---

1 **سورة البقرة آية ٢٥**

2 **سورة النساء آية ٥٧**

غِلٍّ إِخْوَانًا عَلَى سُرُرٍ مُّتَقَابِلِينَ لاَ يَمَسُّهُمْ فِيهَا نَصَبٌ وَمَا هُم مِّنْهَا بِمُخْرَجِينَ.[1]

ترجمة : بېشكه ځان ساتونكي (له متابعت د ابليس نه) په جنتونو كې به وي او په چينو كې به وي (او دوى ته به وويل شي) ننوزئ دغو جنتونو ته په سلامتي سره له هره آفته په دغه حال كې چې په امن كې به ياست (له زوال د دې نعمت) او وبه باسو (لرې به كړو) هر هغه چې په زړونو د دغو (جنتيانو) كې دي له كينې څخه حال دا چې (لكه) ورونه به وي سره ناست به وي پر تختونو (د زرو تختونه به وي او جواهر به پكې لګېدلي وي) مخامخ يو بل ته نه به رسيږي دغو (جنتيانو) ته په دغه (جنت) كې هېڅ قدر تكليف او نه به وي دوى له دغه (جنت نه) ايستلى شوي هېچرې.

وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ إِنَّ رَبَّنَا لَغَفُورٌ شَكُورٌ الَّذِي أَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ مِن فَضْلِهِ لا يَمَسُّنَا فِيهَا نَصَبٌ وَلا يَمَسُّنَا فِيهَا لُغُوبٌ.[2]

ترجمة: او وبه وايي (جنتيان په وخت د دخول د جنت كې) ټوله ثناء صفت خاص الله ته دى هغه الله چې بوئې ته (لرې يې كړ) له مونږ څخه خفګان بېشكه رب زمونږ خامخا بښونكى (د عاصيانو) ښه قدردان (د نيكانو) دى هغه (رب) چې رائې وستو مونږ كور د اقامت (جنت ته) له فضله خپله چې نه رسيږي مونږ ته په دغه (جنت) كې هېڅ مشقت او نه رسيږي مونږ ته په دغه (جنت) كې هېڅ ستوماني خفګان.

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي مَقَامٍ أَمِينٍ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ يَلْبَسُونَ مِن سُندُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ مُّتَقَابِلِينَ كَذَلِكَ وَزَوَّجْنَاهُم بِحُورٍ عِينٍ يَدْعُونَ فِيهَا بِكُلِّ فَاكِهَةٍ آمِنِينَ لا يَذُوقُونَ فِيهَا الْمَوْتَ إِلاَّ الْمَوْتَةَ الأُولَى وَوَقَاهُمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ فَضْلاً مِّن رَّبِّكَ ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ.

---

1 سورة الحجر آية ٤٥-٤٨
2 سورة الفاطر آية ٣٤-٣٥

1

ترجمة :بېشکه چې متقيان به په ځای د امن کې وي (له ټولو مکروهاتو) په جنتونو او چينو کې چې آغوندي به (دوی جامې) له وريښمو نازکو او له وريښمو پېړو (غټو) په دې حال کې چې سره مخامخ به ناست وي هم داسې به وي (بې تغيره او بې تبديلي) او ملګري به کړو مونږ دوی له پېغلو سپينو پوستو غټو سترګو سره غواړي به دوی په دغه (جنت) کې له هرقسم ميوې حال دا چې په امن کې به وي له (انقطاع او ضرر د ميوو او هر مکروه نه) نه به څکي دوی په دغه جنت کې مرګ مګر خو هغه مرګ ړومبنی _چې تېر شوی دی په دنيا کې) او وبه ساتي (الله ) دوی له عذابه د دوزخ نه له جهته د فضل له طرفه د رب ستا ، دغه (انعام او اکرام) هم دا بری دی ډېر لوی.

وَالسَّابِقُونَ السَّابِقُونَ (10) أُوْلَئِكَ الْمُقَرَّبُونَ (11) فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ (12) ثُلَّةٌ مِنْ الْأَوَّلِينَ (13) وَقَلِيلٌ مِنْ الْآخِرِينَ (14) عَلَى سُرُرٍ مَوْضُونَةٍ (15) مُتَّكِئِينَ عَلَيْهَا مُتَقَابِلِينَ (16) يَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُخَلَّدُونَ (17) بِأَكْوَابٍ وَأَبَارِيقَ وَكَأْسٍ مِنْ مَعِينٍ (18) لَا يُصَدَّعُونَ عَنْهَا وَلَا يُنزِفُونَ (19) وَفَاكِهَةٍ مِمَّا يَتَخَيَّرُونَ (20) وَلَحْمِ طَيْرٍ مِمَّا يَشْتَهُونَ (21) وَحُورٌ عِينٌ (22) كَأَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ (23) جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ (24) لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا تَأْثِيمًا (25) إِلَّا قِيلاً سَلَامًا سَلَامًا (26). [2]

ترجمة : او ړومبي کېدونکي (حسناتو) هم دوی ړومبي کېدونکي دي (جنت ته) هم دوی نژدې کړل شوي دي (الله ته) په جنتونو د نعمتونو کې به وي لويه ډله به وي له اولينو ړمبنيو څخه او لږ دي له آخرينو وروستنيو څخه ناست به وي (جنتيان) په تختونو او بدليو شويو چړاو کړل شويو په زرو جواهرو باندې چې تکيه وهونکي به وي (جنتيان) په هغو (تختونو) باندې مخامخ

1 سورة الدخان آية ٥٢-٥٧
2 سورة الواقعة

کېناستونکي یو بل ته ګرځي به په دوی باندې (د
پاره د خدمت) هلکان تل پاتې کېدونکي (په
هلکوالي سره) په ګلاسونو او په کوزو سره او په
کاسو لوښیو سره له صافو پاکو شرابو بهېدونکیو
څخه چې نه به سر خوږیږي له دغو (شرابو) او نه
به بې هوښه کیږي او (ګرځي به په دوی باندې
هلکان په) میوو له هغه راز (قسم) چې ئې خوښوي
(جنتیان) او غوښو د مرغانو سره له هغه ډوله
(قسمه) چې زړونه ئې غواړي او (ګرځي به په دغو
جنتیانو باندې) حورې پیمخې غټې سترګې په شان
د ملغلرو ساتلیو شویو په پوښونو کې جزاء
ورکول دي په هغو چې وو دوی چې کول به یې (له
نیکیو په دنیا کې) نه به اوري دوی په دغه
(جنت کې) چټي (بېکاره) خبرې او نه د ګناه
خبرې مګر اوري یوه خبره سلام سلام (یعني تل به
سلام اچوي جنتیان یو په بل باندې په جنت کې)

وَأَصْحَابُ الْيَمِينِ مَا أَصْحَابُ الْيَمِينِ (27) فِي سِدْرٍ مَخْضُودٍ (28) وَطَلْحٍ مَنْضُودٍ (29) وَظِلٍّ مَمْدُودٍ (30) وَمَاءٍ مَسْكُوبٍ (31) وَفَاكِهَةٍ كَثِيرَةٍ (32) لَا مَقْطُوعَةٍ وَلَا مَمْنُوعَةٍ (33) وَفُرُشٍ مَرْفُوعَةٍ (34) إِنَّا أَنْشَأْنَاهُنَّ إِنْشَاءً (35) فَجَعَلْنَاهُنَّ أَبْكَارًا (36) عُرُبًا أَتْرَابًا (37) لِأَصْحَابِ الْيَمِينِ (38) ثُلَّةٌ مِنَ الْأَوَّلِينَ (39) وَثُلَّةٌ مِنَ الْآخِرِينَ (40).[1]

ترجمة : او ملګري یاران د ښي لاس څومره ښه دي
ملګري یاران د ښي لاس په بېرو بې اغزیو کې به
وي او په (میوه د) کیلو له بیخه تر سره ډکو
کړل شویو کې به وي او په سیوریو اوږدو کړیو
شویو همېشه وو کې به وي او په اوبو بهېدونکیو
توئېدونکیو همېشه وو کې به وي او په مېوو
ډېرو کې به وي چې نه به قطع کولی کیږي په هېڅ
وقت او نه به منع کولی کیږي په هېڅ عذر سره
او په فرشونو اوچتو کړل شویو کې به وي (په
پالنګونو باندې) بېشکه مونږ نوي پیدا کړي دي
دغه حورې په یوه ښه پیدا کولو سره نو ګرځولي

[1] سورة الواقعة

مو دي دوی پېغلې عاشقانې (پر جنتیانو خاوندانو خپلو) همزولې (په خپل مابین کې) د پاره د ملګرو یارانو د ښي لاس (اصحاب الیمین به) لویه ډله وي له اولینو او ړومبنیو خلقو څخه او لویه ډله به وي له آخرینو وروستنیو خلقو نه.

وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ لِسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ لاَّ تَسْمَعُ فِيهَا لاغِيَةً. 1

ترجمة: ځینې مخونه به په دغې ورځې کې ښائسته او تازه وي پخپل کوښښ باندې (چې ئې کړی وي په دنیا کې) راضي خوشحال به وي (په آخرت کې) په جنت لوړ شاندار کې به وي نه به آورې په هغه جنت کې کومه چټي بېکاره خبره.

## د جنت تعمیر

حضرت ابو سعید الخدري فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : خلق الله تبارك وتعالى الجنة لبنة من ذهب ولبنة من فضة، وملاطها المسك، وقال لها: تكلمي فقالت: قد أفلح المؤمنون فقالت الملائكة: طوبى لك منزل الملوك . 2

ترجمة : الله جنت پیدا کړو یوه خښته د سپینو او بله د سرو زرو او په هغې کې د ختې په ځای استعمال شول مسک ورته یې وویل خبرې وکوه هغه وویل : په تحقیق سره مؤمنان کامیاب شول ملائکو ورته وویل : ته ډېر ښه یې د بادشاهانو هستوګنځیه .

حضرت ابو سعید الخدري فرمایي : أن ابن صياد سأل النبي صلى الله عليه وسلم عن تربة الجنة فقال (درمكة) بيضاء مسك خالص .

---

1 سورة الغاشية
2 رواه البزار

ترجمة : بېشکه ابن صیاد نومي کس له رسول الله ﷺ څخه د جنت د خاورې په اړه پوښتنه وکوله رسول الله ﷺ ورته وفرمایل (درمکة) یو ډول سپین خالص مسک دي .

حضرت انس بن مالک فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : أدخلت الجنة فإذا فيها جنابذ اللؤلؤ وإذا ترابها المسك.

ترجمة : زه جنت ته ننوتلم هلته مې ولیدل چې د ملغلرو ګنبدې وې او خاوره یې مسک وو .

## د جنت تر ټولو لوی نعمت

په جنت کې به د جنتیانو لپاره تر ټولو لوی نعمت د الله دیدار وي پدې کې به جنتیانو ته دومره لذت وي چې ددېنه وړاندې ټول لذتونه به وربانـدې هېر کړي او دا حق دی چې جنتیان به الله ته ګوري الله فرمایي : وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ (22) إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ (23) .[1]

ترجمة : ځینې مخونه (یعني د مؤمنانو به) په دغې ورځې (د قیامت) کې شائسته تازه روښانه وي خاص ذات د رب خپل ته به کتونکي وي.

الله فرمایي : لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ .[2]

ترجمة : (شته) د پاره د هغو کسانو چې نیکي ئې کړې (ایمان ئې راوړی) نیکه (جزا جنت) او زیادت (له اجره هم شته ) .

علماء کرام فرمایي چې د حسنی نه مطلب جنت دی

1 سورة القيامة
2 سورة يونس آية ٢٦

او د زیادة نه مطلب د الله دیدار دی

یعني مؤمنان به الله ته ګوري او لږ وروسته به حدیث ستاسې په وړاندې کیږدم چې رسول الله ﷺ فرمایي د جنتیانو لپاره به دا نعمت تر هر بل نعمت نه خوږ او غوره وي او د کفارو په اړه الله فرمایي چې دوی به ددې قسمت نه لري چې د الله دیدار وکوي الله فرمایي :

كَلَّا إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ (15) . [1]

ترجمة : نه داسې نه ده بېشکه دوی پدې ورځ د خپل رب نه په پرده کې دي دوی به نشي کولی چې هغه ووینې.

حضرت جریر بن عبد الله فرمایي ما له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکوله : **هل نرى ربنا يوم القيامة ؟** (آیا د قیامت په ورځ به مونږ خپل رب وینو؟) رسول الله ﷺ راته وویل : **إنكم سترون ربكم كما ترون القمر ليلة البدر ، لا تضامون في رؤيته** (تاسې به خپل رب داسې وینئ لکه سپوږمۍ په هغه شپه چې پوره وي او تاسې ته به هېڅ تکلیف نه وي د هغه په لیدلو کې) یعني نه به ددې تکلیف وي درته چې ځینو ته به ښکاره کیږي او ځینو ته نه او نه به ددې تکلیف وي چې تاسې ته به ددې ضرورت وي چې تاسې به له یو بل سره په لیدلو کې تیلې وهئ او ازدحام به کوئ.

الله فرمایي : **لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَى وَزِيَادَةٌ .** [2] په سنن الترمذي کې روایت دی چې ددې آیة په اړه رسول الله ﷺ وفرمایل : **ذا دخل أهل الجنة الجنة نادى مناد: إن لكم عند الله**

---

1 **سورة المطففين آية ١٥**
2 **سورة يونس آية ٢٦**

موعداً يريد أن ينجزكموه، قالوا: ألم يبيض وجوهنا؟ ألم ينجنا من النار؟! ألم يدخلنا الجنة؟! قالوا: بلى، فيكشف الحجاب، فوالله ما أعطاهم شيئاً أحب إليهم من النظر إليه .[1]

ترجمة : كله چې جنتيان جنت ته ننوزي يو اواز كوونكى به ورته اواز وكوي بېشكه لتاسې سره د الله يوه وعده ده اوس هغه غواړي چې پوره يې كړي دوى به ووايي آيا زمونږ مخونه يې سپين كړي نه دي؟ آيا مونږ يې له اوره نه يو را ايستلي؟ آيا جنت ته يې نه يو را ننه ايستلي اواز كونكي به ووايي هو ... بيا به الله ورته هغه پرده لرې كړي چې دده او د بندګانو په مينځ كې ده والله چې دوى ته به الله ته له كتلو نه زيات ښه شى دوى ته نه وي وركړل شوي .

حضرت عطاء بن يزيد الليثي فرمايي حضرت ابو هريره فرمايل : صحابه وو د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وكوله چې آيا په جنت كې به مونږ خپل رب وينو؟ رسول الله ﷺ فرمايل **هَلْ تُضَارُّونَ فِى رُؤْيَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ** (ولې تاسې ته د سپوږمۍ چې پوره وي په ليدلو كې څه تكليف شته؟) صحابه وو ورته وويل : نه يا رسول الله بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : **هَلْ تُضَارُّونَ فِى الشَّمْسِ لَيْسَ دُونَهَا سَحَابٌ** (كله چې وريځ نه وي تاسې ته د لمر په ليدلو كې څه تكليف شته؟) صحابه وو ورته وويل : نه يا رسول الله ﷺ بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسې به خپل رب همداسې وينئ .

## د جنتيانو خوراک

جنتيانو ته به په جنت كې هغه خوراک وركول

[1] **سنن الترمذي**

کیږي چې کوم د دوی زړه غواړي ، کومه مېوه چې د دوی زړه غواړي او کومه غوښه چې د دوی زړه غواړي او داسې خوراکونه به وي چې لکه مخکې تېر شول نه به په بدن باندې څه ډول بده اغیزه کوي ، نه به د انسان ورڅخه زړه توریږي ، نه به انسان د ډېر خوراک نه د څه بل اثر نه ډاریږي او نه به له انسان سره دا غم وي چې دا به ختم شي بلکه همېشه دائمي خوراکونه به وي چې جنتیانو ته به په پاکه منزه طریقه ورکول کیږي او دوی به ورڅخه لذت اخلي الله فرمایي :
**وَفَاكِهَةٍ مِمَّا يَتَخَيَّرُونَ (20) وَلَحْمِ طَيْرٍ مِمَّا يَشْتَهُونَ (21)** . [1]

ترجمة : او (ګرځي به په دوی باندې هلکان په) میوو له هغه راز (قسم) چې ئې خوښوي (جنتیان) او غوښو د مرغانو سره له هغه ډوله (قسمه) چې زړونه ئې غواړي

یعني دوی ته به اختیار ورکول کیږي او دوی به د خوراک لپاره هغه څه غوره کوي چې د دوی ورته زړه کیږي او دوی ته به ډول ډول خوراکونه ور وړاندې کیږي او دی به ورڅخه هغه اخلي چې خوراک یې دده زړه غواړي .

حضرت جابر فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **يَأْكُلُ أَهْلُ الْجَنَّةِ فِيهَا وَيَشْرَبُونَ وَلاَ يَتَغَوَّطُونَ وَلاَ يَمْتَخِطُونَ وَلاَ يَبُولُونَ وَلَكِنْ طَعَامُهُمْ ذَاكَ جُشَاءٌ كَرَشْحِ الْمِسْكِ يُلْهَمُونَ التَّسْبِيحَ وَالْحَمْدَ كَمَا يُلْهَمُونَ النَّفَسَ** . [2]

ترجمة : جنتیان به په جنت کې خوراک کوي او څښاک به کوي دوی به هلته قضاء حاجت نه کوي او نه به یې له پوزې نه څه ګندګي راځي ، نه به خالي بولې کوي بلکه خوراک به یې هلته صرف یو ارګمی وي لکه د مسکو بوی او دوی ته به د تسبیح او حمد الهام داسې کیږي لکه دوی چې

---

[1] **سورة الواقعة**
[2] **صحیح مسلم**

تنفس كوي يعني په اساني سره به د الله تسبيح او حمد بيانوي نور به يې هېڅ كار هم نه وي او نه به څه كار كوي .

حضرت انس بن مالک فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : أَوَّلُ شَيْءٍ يَأْكُلُهُ أَهْلُ الْجَنَّةِ زِيَادَةُ كَبِدِ الْحُوتِ . [1]

ترجمة : بېشكه جنتيان چې اول په جنت كې كوم شى خوري هغه به د ماهي د جيګر سره اضافي ټوټه وي .

علماء فرمايي چې دا د ماهي د جيګر سره اضافي يوه ټوټه وي او دا ډېره ښه ذائقه لري او ډېره خوندوره وي .

حضرت ثوبان د رسول الله ﷺ ازاد كړل شوى غلام روايت كړى دى او هغه فرمايي : كُنْتُ قَائِمًا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ فَجَاءَ حَبْرٌ مِنْ أَحْبَارِ الْيَهُودِ فَقَالَ السَّلاَمُ عَلَيْكَ يَا مُحَمَّدُ. فَدَفَعْتُهُ دَفْعَةً كَادَ يُصْرَعُ مِنْهَا فَقَالَ لِمَ تَدْفَعُنِى فَقُلْتُ أَلاَ تَقُولُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَالَ الْيَهُودِىُّ إِنَّمَا نَدْعُوهُ بِاسْمِهِ الَّذِى سَمَّاهُ بِهِ أَهْلُهُ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ « إِنَّ اسْمِى مُحَمَّدٌ الَّذِى سَمَّانِى بِهِ أَهْلِى ». فَقَالَ الْيَهُودِىُّ جِئْتُ أَسْأَلُكَ. فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ « أَيَنْفَعُكَ شَىْءٌ إِنْ حَدَّثْتُكَ ». قَالَ أَسْمَعُ بِأُذُنَىَّ فَنَكَتَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ بِعُودٍ مَعَهُ. فَقَالَ « سَلْ ». فَقَالَ الْيَهُودِىُّ أَيْنَ يَكُونُ النَّاسُ يَوْمَ تُبَدَّلُ الأَرْضُ غَيْرَ الأَرْضِ وَالسَّمَوَاتُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ « هُمْ فِى الظُّلْمَةِ دُونَ الْجِسْرِ ». قَالَ فَمَنْ أَوَّلُ النَّاسِ إِجَازَةً قَالَ « فُقَرَاءُ الْمُهَاجِرِينَ ». قَالَ الْيَهُودِىُّ فَمَا تُحْفَتُهُمْ حِينَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ قَالَ « زِيَادَةُ كَبِدِ النُّونِ » قَالَ فَمَا غِذَاؤُهُمْ عَلَى إِثْرِهَا قَالَ « يُنْحَرُ لَهُمْ ثَوْرُ الْجَنَّةِ الَّذِى كَانَ يَأْكُلُ مِنْ أَطْرَافِهَا قَالَ فَمَا شَرَابُهُمْ عَلَيْهِ قَالَ « مِنْ عَيْنٍ فِيهَا تُسَمَّى سَلْسَبِيلاً ». قَالَ صَدَقْتَ. قَالَ وَجِئْتُ أَسْأَلُكَ عَنْ شَىْءٍ لاَ يَعْلَمُهُ أَحَدٌ مِنْ أَهْلِ الأَرْضِ إِلاَّ نَبِىٌّ أَوْ رَجُلٌ أَوْ رَجُلاَنِ. قَالَ « يَنْفَعُكَ إِنْ حَدَّثْتُكَ ». قَالَ أَسْمَعُ بِأُذُنَىَّ . [2]

---

[1] **صحيح مسند الطياليسي**
[2] **صحيح مسلم**

ترجمة : زه د رسول الله ﷺ سره ولاړم وم چې د يهودو يو عالم راغلو ويل يې محمده په تا د سلام وي ما داسې په زوره ټېله کړو چې نېږدې غورځېدلی وو هغه راته وويل ولې د ټېله کړم؟ ما ورته وويل ولې د داسې ونه ويل يا رسول الله ؟ يهودي وويل مونږ ورته هغه نوم اخلو کوم چې ورته د کور خلک اخلي بيا رسول الله ﷺ وويل محمد زما هغه نوم دی چې زما کور واله يې ما ته اخلي يهودي ورته وويل : زه راغلی يم لتا څخه پوښتنه کوم رسول الله ﷺ ورته وويل : که زه تاته د هغې ځواب درکړم تاته څه فايده کوي؟ هغه وويل په غوږونو سره يې آورم د رسول الله ﷺ په مبارکو ګوتو کې يو وړوکی لرګی وو په هغه باندې يې زمکه ګرولـه ورته يې وويل پوښتنه د وکوه يهودي ورته وويل کله چې دا زمکه په بله زمکه او اسمان هرڅه د قيامت په ورځ بدليږي پدې وخت کې به داخلک چېرته وي؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : دا به د پل سره په تياره کې وي يهودي وويل : اول به چاته اجازه ورکوله کيږي ؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : فقراء المهاجرين ته يهودي وويل : دوی چې جنت ته ننوزي تحفه به يې څه شی وي؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : د ماهي د جيګر سره زياته ټوټه يهودي ورته وويل : ددېنه وروسته به دوی ته څه خوراک ورکول کيږي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : دوی ته به د جنت غوايی حلال کړل شي د هغه اندامونه به وخوري بيا يهودي وويل : ددېنه وروسته به څه شی څښي؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : په جنت کې يوه چينه ده چې سلسبيل ورته ويل کيږي د هغې نه يهودي ورته وويل زه راغلم لتا نه تا رښتيا وويل زه راغلم لتا نه مې د داسې خبرو پوښتنه وکوله چې د زمکې په مخ پرې د نبي نه بغير او يو يا دوو انسانانو نه

بغير وربانديې بل څوک نه دي خبر رسول الله ﷺ ورته وويل :چې زه درته خبرې وکوم تاته څه فايده کوي؟ يهودي وويل : په غوږونو سره يې آورم .

## د جنت ونې او ميوې

په جنت کې ونې ډېرې دي او په متعدد ډوله دي چې الله يې مونږ ته خبر راکړی دی د انګور ونې دي ، خورماوې دي ، انار دي او داسې نورې ونې پکې وجود لري البته دا ونې صرف په نوم کې د دنيا له ونو سره شريکې دي په حقيقت کې هغه ونې لدې نه ډېرې بدلې دي د مثال په ډول په هغه ونو کې چې کومه ميوه وي د هغې مزه د هغې رنګ د هغې بوی او چې کله هغه ميوه له ونې وشکول شي سم د لاسه به يې په ځای بانديې بله هغه ډول ميوه را شنه کيږي او که هرڅو ډېره ميوه په جنت کې څوک وخوري نه به ورته ترينه څه تکليف پيدا کيږي او نه به يې په معده بانديې بوج کيږي او داسې نور ډېر فرق به لري البته ددې لپاره چې انسانان وربانديې پوه شي نو هغه نومونه ورته يادوي کومې ونې چې په دنيا کې وې د جنت د ونو ذکر الله کوي او فرمايي : إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا حَدَائِقَ وَأَعْنَابًا وَكَوَاعِبَ أَتْرَابًا .[1]

ترجمة : بېشکه خاص متقيانو ته (په آخرت کې) ځای د خلاصي بري کاميابي دی باغونه (د ميوې) او د انګورو (ونې) دي او پېغلې انارتيونې همزولې دي.

فِيهِمَا فَاكِهَةٌ وَنَخْلٌ وَرُمانٌ .[2]

---

[1] سورة النباء آية ٣١-٣٢
[2] سورة الرحمن آية ٦٨

ترجمة : په جنتونو کې به میوې وې خورما او انار به وي .

وَأَصْحَابُ الْيَمِينِ مَا أَصْحَابُ الْيَمِينِ فِي سِدْرٍ مَّخْضُودٍ وَطَلْحٍ مَّنضُودٍ وَظِلٍّ مَّمْدُودٍ وَمَاء مَّسْكُوبٍ وَفَاكِهَةٍ كَثِيرَةٍ . [1]

ترجمة : او ملګري ياران د ښي لاس څومره ښه دي ملګري ياران د ښي لاس په بېرو بې اغزيو کې به وي او په (ميوه د) کيلو له بيخه تر سره ډکو کړل شويو کې به وي او په سيوريو اوږدو کړيو شويو همېشه وو کې به وي او په اوبو بهېدونکيو توئېدونکيو همېشه وو کې به وي او په مېوو ډېرو کې به وي .

مُتَّكِئِينَ فِيهَا يَدْعُونَ فِيهَا بِفَاكِهَةٍ كَثِيرَةٍ وَشَرَابٍ . [2]

ترجمة : تکيه وهلي (ناست به وي مؤمنان) په دغو (جنتونو) کې چې غواړي به (دغه جنتيان) په هغو کې ميوې ډېرې او څيزونه د) څښلو.

وَفَاكِهَةٍ مِّما يَتَخَيَّرُونَ . [3]

ترجمة : او (ګرځي به په دوی باندې هلکان په) ميوو له هغه راز (قسم) چې ئې خوښوي (جنتيان).

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي ظِلالٍ وَعُيُونٍ وَفَوَاكِهَ مِما يَشْتَهُونَ . [4]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې ځان يې ساتلی له متابعت د شيطان نه په سيورو (د جنت) کې به وي او په چينو کې به وي او په داسې مېوو کې به وي چې د دوی زړه غواړي.

---

[1] سورة الواقعة آية ٢٧-٣٢
[2] سورة ص آية ٥١
[3] سورة الواقعة آية ٢٠
[4] سورة المرسلات آية ٤١-٤٢

يُطَافُ عَلَيْهِم بِصِحَافٍ مِّن ذَهَبٍ وَأَكْوَابٍ وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنفُسُ وَتَلَذُّ الْأَعْيُنُ وَأَنتُمْ فِيهَا خَالِدُونَ . [1]

ترجمة : ګرځولی کیږي به (د غلمانو له خوا) پر دغو جنتیانو کاسې ګلاسونه له سرو زرو څخه او (طلایي) صراحې ګانې او (وي به دوی ته) په دغه (جنت) کې هغه شیان چې خواهش کوي د هغوی نفسونه (د دوی) او چې خوند اخلي سترګې (د دوی ترې) او (ویل کیږي به دوی ته) تاسې به پدې جنت کې همېشه وئ .

امام ابن کثیر فرمایي : وإذا كان السدر الذي في الدنيا لا يثمر إلا ثمرة ضعيفة وهو النبق، وشوكه كثير، والطلح الذي لا يراد منه في الدنيا إلا الظل، يكونان في الجنة في غاية من كثرة الثمار وحسنها، حتى إن الثمرة الواحدة منها تتفتق عن سبعين نوعاً من الطعوم، والألوان، التي يشبه بعضها بعضاً، فما ظنك بثمار الأشجار، التي تكون في الدنيا حسنة الثمار، كالتفاح، والنخل، والعنب، وغير ذلك؟ وما ظنك بأنواع الرياحين، والأزاهير؟ وبالجملة فإن فيها ما لا عين رأت، ولا أذن سمعت، ولا خطر على قلب بشر، نسأل الله منها من فضله . [2]

ترجمة : کله چې په دنیا کې السدر ونه داسې یوه ونه ده چې یو ډول ضعیفه میوه لري او زیاته اغزي لرونکي ونه ده او الطلح یوه ونه ده چې په دنیا کې ورڅخه مطلب صرف سیوری وي (او د کیلې په ونه یې هم تفسیر شوی دی) دا دواړه ونې به په جنت کې داسې وي چې ډېرې ښې او زیاتې میوې به لري تردې چې په دوی کې به یوه میوه په اویا خوندونو باندې مشتمله وي او په مختلفو رنګونو به مشتمله وي نو چې دلته یوه بې میوې ونه په جنت کې داسې میوه ورکوي ستا څه ګمان دی د هغه ونو په اړه چې دلته هم ښکلې میوه لري لکه مڼه ، خورما ، انګور او

[1] سورة الزخرف آية ٧١
[2] تفسير ابن كثير

داسې نور؟ او ستا څه ګمان دی د مختلفو ګلونو په اړه خلاصه دا چې په جنت کې چې کوم شیان دي هغه داسې نعمتونه دي چې نه خو سترګو لیدلي ، نه غوږونو آورېدلي دي او نه د کوم انسان په زړه کې ورت تېر شوي دي مونږ یې د الله له فضل څخه سوال کوو .

د جنت ونې به داسې نه وي لکه د دنیا ونې چې خپل سیزن او خپل وخت لري په هغه وخت کې میوه ورکوي او د هغه وخت نه بغیر یې نور ټول کال هېڅ میوه نه وي او کوم انسانان چې په دنیا کې لدې ونو میوه اخلي هغه به تر بله هغه وخته پورې ورته صبر وکوي چې دا ونه میوه وکوي او بیا یې دی ورڅخه واخلي بلکه د جنت ونې هر وخت میوه او هر وخت سیوری ورکوي او ټول عمر په یو ډول تازه وي او د وخت په تېرېدو سره به یکې هېڅ ډول بدلون نه راځي الله فرمايي : مَّثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ أُكُلُهَا دَآئِمٌ وِظِلُّهَا تِلْكَ عُقْبَى الَّذِينَ اتَّقَواْ وَّعُقْبَى الْكَافِرِينَ النارُ .[1]

ترجمة : مثال (صفت) د جنت هغه چې وعده کړې شوې ده (په هغه سره) د پرهېزګارانو سره (دا دي چې) بهیږي (همېشه) له لاندې (د باغونو او مانیو) د هغه (څلور قسمه) ویالې میوې د هغې (به همېشه بې انتهاء او بې انقطاع) وي او سوری د هغه (به هم همېشه وي بې زواله) دا (جنت) عاقبت (او مرجع) دی د هغو کسانو چې پرهېزګاري کوي او عاقبت (کې ځای) د کافرانو اور (د دوزخ) دی.

وَفَاكِهَةٍ كَثِيرَةٍ لاَّ مَقْطُوعَةٍ وَلا مَمْنُوعَة.[2]

ترجمة : او په مېوو ډېرو کې به وي چې نه به

1 سورة الرعد آية ٣٥
2 سورة الواقعة آية ٣٢-٣٣

قطع کولی کیږي په هیڅ وقت او نه به منع کولی کیږي په هیڅ عذر سره.

او د جنت په میوو کې یوه عجیبه خبره به دا وي چې په ښکاره شکل کې به داسې وي لکه د دنیا مېوه خو چې کله یې جنتیان وخکي نو خوند به یې ډېر بدل وي ددې وجې نه خو به چې دوی ته څه رزق ورکول کیږي دوی به وایي چې دا خو هماغه دی چې مخکې (په دنیا کې) راکړل شوی وو الله فرمايي : **كُلَّمَا رُزِقُواْ مِنْهَا مِن ثَمَرَةٍ رِّزْقاً قَالُواْ هَذَا الَّذِي رُزِقْنَا مِن قَبْلُ وَأُتُواْ بِهِ مُتَشَابِهاً وَلَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ .** [1]

ترجمة : هر کله چې روزي ورکړه شي دغو (جنتیانو) ته له جنتونو څخه څه مېوه لپاره د خوړلو نو وايي دا (جنتیان) دا همغسې مېوه ده چې راکړل شوې وه مونږ ته پخوا له دې نه او رابه وړه شي دوی ته مېوه هم رنګه (او په خوند کې سره بدله) او وي به دوی ته په دغو (جنتونو) کې ښځې ښې پاکې او دوی به وي په دغو (جنتونو) کې همېشه.

رسول الله ﷺ د جنت د ونو په اړه ډېر څه ویلي دي او د مختلفو ونو په اړه یې مونږ ته خبرې کړي دي د مثال په توګه :

هغه ونه چې تلونکی یې تر سیوري لاندې سل کاله سفر کوي .

دا یوه داسې ونه ده چې رسول الله ﷺ یې په اړه مونږ ته خبر راکړی دی او په دنیا کې یې مونږ تصور هم نشو کولی الله به په خپل قدرت په جنت کې پیدا کړېده چې یو کس په آس سپور د آس په تیز رفتار سره د هغه ونې په سیوري کې ځي نو

---

[1] سورة البقرة آية ٢٥

په سلو کلونو کې یې قطع کولی شي حضرت ابو سعید الخدري فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إن في الجنة لشجرة يسير الراكب الجواد المضمر السريع مائة عام وما يقطعها.** [1]

ترجمة : بېشکه په جنت کې يوه ونه ده چې يو سپور کس چې په ښه آس باندې سپور وي هغه چې ډېر تيز ځي هغه يې په سلو کلونو کې قطع کولی شي .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **ان في الجنة لشجرة يسير الراكب في ظلها مائة سنة، واقرؤوا إن شئتم: (وظل ممدود).** [2]

ترجمة : بېشکه په جنت کې يوه ونه ده يو سپور سړی د هغې ونې په سيوري کې سل کاله سفر کوي پدې اړه که ستاسې خوښه وي د سورة واقعې دا آيت تلاوت کړئ چې الله فرمايي سيوری به وي اوږد .

حضر ابو هريره او حضرت سهل بن سعد فرمايي رسول اللهﷺ فرمايل : **إن في الجنة لشجرة يسير الراكب في ظلها مائة سنة لا يقطعها .** [3]

ترجمة : بېشکه په جنت کې يوه ونه ده چې يو سپور د هغه په سيوري کې سل کاله سفر کوي او نه به يې شي ختمولی .

الله فرمايي : **وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَى عِندَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهَى عِندَهَا جَنَّةُ الْمَأْوَى إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشَى مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغَى.** [4]

---

1 **صحيح البخاري و مسلم**
2 **صحيح البخاري**
3 **صحيح مسلم**
4 **سورة النجم آية ١٣-١٧**

ترجمة : او خامخا په تحقيق ليدلی وو محمد هغه (جبريل) په راښکته کېدلو کې بل ځلې په نزد د دونې د بېرې د سدرة المنتهى (چې منتها د علم د خلقو دی) په نزد د هغې دی جنت الماوی (يعني ځای د هستوګنې د مؤمنانو) (ليدلی وو محمد جبريل لره) کله چې پټ کړل هغې ونې د بېرې لره هغه څه چې پټ کړي ئې وو نه وې ګرځېدلې سترګې د (محمد ﷺ بلې خوا ته) او نه دي تېرې شوې (له حده) .

رسول الله ﷺ چې کله دا ونه ليدلې وه داسې يې بيانوله : ثم رفعت لي سدرة المنتهى، فإذا نبقها مثل قلال هجر وإذا ورقها مثل آذان الفيلة. قال: (أي جبريل) هذه سدرة المنتهى، وإذا أربعة أنهار،نهران باطنان، ونهران ظاهران، قلت: ما هذان يا جبريل؟ قال: أما الباطنان فنهران في الجنة، وأما الظاهران فالنيل والفرات .[1]

ترجمة : بيا زه سدرة المنتهى ته پورته کړل شوم هلته مې يوه ونه وليده چې پاڼې يې لکه د فيل غوږونه داسې وو جبريل وويل دا سدرة المنتهى ده چې ما وليدل له هغه ځای څخه څلور نهرونه روان وو دوه نهرونه پټ او دوه ښکاره وو ما ورته وويل دا څه شی دي جبريل؟ حضرت جبريل وفرمايل : دا پټ چې دي دا نهرونه دي په جنت کې او دا ښکاره چې دي دا نيل او فرات دي چې په دنيا کې دي .

## د طوبی ونه

دا هم په جنت کې يوه لويه ونه ده حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي طوبى شجرة في الجنة، مسيرة مائة

---

[1] رواه البخاري ومسلم

عام، ثياب أهل الجنة تخرج من أكمامها. [1]

ترجمة : طوبي په جنت کې ونه ده چې د سلو کالونو د سفر د مسافې په اندازه ده د جنتيانو جامې به د هغې له پوستکي څخه وي .

ددينه بغير د نورو ونو هم ذکر شوی دی او په جنت کې چې څومره ونې وي هغه به د لرګي نه بلکه د سرو زرو جوړې وي تنه به يې د سرو زرو وي او نورې به هم ډېرې ښائسته جوړې شوې وي .

## د جنتيانو څښاک

لکه د خوراک په څېر داسې به د جنتيانو څښاک هم خاص وي څه ډول څښاک يې چې زړه ته کيږي هغه به ورکول کيږي او اکثر وخت به جنتيان ددې امله څښاک نه کوي چې دوی به تږي شوي وي بلکه ددې لپاره به څښاک کوي چې مزه ورڅخه واخلي او ددې ضرورت به يې هم نه کيږي چې د څښاک لپاره پاڅيږي بلکه هرڅه به په پاکو ګلاسونو کې د دوی مخې ته کېښودل کيږي چې مختلفې ذائقې به لري الله فرمايي : إِنَّ الأَبْرَارَ يَشْرَبُونَ مِن كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُوراً* عَيْناً يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ اللَّهِ يُفَجِّرُونَهَا تَفْجِيراً . [2]

ترجمة : بېشکه ابرار (نيکان) څښي (په جنت کې) له جامونو د شرابو څخه چې وي ګډ له هغو سره (جنتي) کافور چينه چې څښي به له هغې څخه (نېک) بندګان د الله چې بيا ئې به (مؤمنان) دغې (چينې) لره (هر چېرته چې ئې خوښه وي په بېول) وفا کوي (ابرار) په (هغه) نذر سره (چې ئې واجب کړی وي په طاعت د الله کې پر ځانونو خپلو باندې) او ويريږي (ابرار) له هغې ورځې چې شر ئې ښکاره او تيت (څرګند) دی .

---

1 مسند امام احمد ابن حنبل
2 سورة الدهر(الانسان) آية ٥-٦

په بل ځای کې الله فرمايي : وَيُسْقَوْنَ فِيهَا كَأْساً كَانَ مِزَاجُهَا زَنجَبِيلاً* عَيْناً فِيهَا تُسَمَّى سَلْسَبِيلاً .[1]

ترجمة : او ورڅښول کيږي به جنتيانو ته په جنت کې جامونه د شرابو چې وي به ګډ له (پاکو شرابو د) هغه سره (لپاره د خوشبويي جنتي) زنجبيل چينه په دغه (جنت کې چې) نوم ئې اېښودلى شوى دى په سلسبيل سره (چې د حلقه اسانه لذيذه تيريږي).

وَسَقَاهُمْ رَبُّهُمْ شَرَاباً طَهُوراً .[2]

ترجمة : او ور وبه څښي دغو (جنتيانو ته) رب د دوى شراب طهور (څښاک ښه پاکيزه).

يطَافُ عَلَيْهِم بِكَأْسٍ مِن مَّعِينٍ بَيْضَاء لَذَّةٍ لِّلشارِبِينَ لا فِيهَا غَوْلٌ وَلا هُمْ عَنْهَا يُنزَفُونَ .[3]

ترجمة : ګرځولى به شي پر دوى له جامونو د صافو شرابو تک سپين خوند ورکوونکي د پاره د څښونکيو نه به وي په دغو شرابو کې څه آفت علت او نه به وي دوى له هغو شرابو څخه مست بېخوده.

يُسْقَوْنَ مِنْ رَحِيقٍ مَخْتُومٍ خِتَامُهُ مِسْكٌ وَفِي ذَلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنَافِسُونَ .[4]

ترجمة : ور څښولى شي (هغوى ته) له خالصو شرابو مهر کړيو شويو څخه چې مهر به يې مشک وي او په دغو (شرابو او نورو جنتي نعمتونو) باندې پس بايد دي چې رغبت وکړي رغبت کوونکي (په کولو د نېکو عملونو او پرېښودلو د بدو

1 سورة الدهر (الانسان) آية ١٧-١٨
2 سورة الدهر (الانسان) آية ٢١
3 سورة الصافات آية ٤٥-٤٧
4 سورة المطففين آية ٢٥-٢٦

عملونو) .

لنډه دا چې په جنت کې هر ډول خوراک او څښاک د جنتیانو لپاره تیار وي خو د جنتي اشتهاء ته صبر کوي چې څه شی د هغه زړه وغواړي او د جنتیان اکثر څښاک صافې پاکې اوبه ، شهد ، شودې، جنتي شراب، زنجبیل، کافر، د تسنیم چینې اوبه ، او د سلسبیل چینې اوبه وي ..

# جنتي شراب

په جنت کې به جنتيانو ته جنتي شراب ورکول کيږي هغه صرف په نوم کې د دنيا د شرابو سره شريک دي نور په حقيقت کې مکمل بدل دي هغه لداسې شيانو نه چې د دنيا په شرابو کې دي مقدس دي او منزه دي دا مردار دي ، د دنيا شراب ګندګي ده ، بې نمازه ده چې په کومه جامه ولګيږي مونځ ورسره نه کيږي د جنت شراب د الله يو نعمت دی په هغه کې ګندګي نشته ، مرداري پکې نشته ، جنتي به نه نشه کوي ، او په جنتي باندې به غير ارادي او بې ځايه حرکات نه کوي او په جنت کې به د شرابو نهرونه وي مخکې تېر شول چې الله فرمايل **وَأَنْهَارٌ مِنْ خَمْرٍ لَذَّةٍ لِلشَّارِبِينَ** (په جنت کې به د شرابو نهرونه وي چې د څښونکي لپاره به يو ډول لذت او مزه وي) .

# جنتي عسل (شهد)

په جنت کې به جنتيان شهد هم څښي لکه د مخکې په څېر صرف په نوم کې د دنيا له شهدو سره شريک دي په حقيقت کې هغه بل شی دی هغه د مچيو ناړې نه دي او د مچيو له بدن څخه نه راوزي بلکه په جنت کې به نهر وي له هغه نه به يې جنتيان څښي الله فرمايي **وَأَنْهَارٌ مِنْ عَسَلٍ مُصَفًّى** (په جنت کې به د پاکو صاف کړل شويو شهدو نهرونه وي) .

# جنتي شودې

د جنت شودې هم د جنتيانو له څښاک څخه دي کومې چې په جنت کې له نهر نه اخيستل کيږي کومې به چې په سپين والي کې ډېرې سپينې او همېشه تازه وي او د وخت له تېرېدو سره به پکې هېڅ فرق نه راځي ښه ذائقه او ښه بوی لرونکی د جنتيانو

ځښاک دی او په جنت کې یې نهرونه دي الله فرمايي **وَأَنْهَارٌ مِنْ لَبَنٍ لَمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ** (او په جنت کې به د شودو نهرونه وي چې خوند به يې بدل نه وي)

پوښتنه : کله چې په جنت کې جنتيان نه وږي کيږي نه تږي کيږي او نه بيمار کيږي نو بيا خوراک او ځښاک د څه لپاره کوي؟ او چې کله هغوی ته څه ډول بيماري نه لګيږي او نه يې بدن بد بوی کوي نو بيا په خوشبويي لګولو څه کوي دا هرڅه د څه لپاهر کوي؟

ځواب : ددې پوښتنې ځواب امام المفسرين قرطبي کړی د هغه فرمايي : **نعيم أهل الجنة وكسوتهم ليس عن دفع ألم اعتراهم، فليس أكلهم عن جوع، ولا شربهم عن ظمأ، ولا تطييبهم عن نتن، وإنما هي لذّات متوالية، ونعم متتابعة، ألا ترى قوله تعالى لآدم:إِنَّ لَكَ أَلاَّ تَجُوعَ فِيهَا وَلا تَعْرَى وَأَنَّكَ لا تَظْمَأُ فِيهَا وَلا تَضْحَى .** [1]

ترجمة : د جنت نعمتونه او د جنت جامه د کوم درد د لرې کولو لپاره نه ده نه يې خوراک د لوږې له امله دی او نه يې ځښاک د تندې د ختمولو لپاره دی او نه يې خوشبويي د بد بوی د لرې کولو لپاره ده بلکه د جنت نعمتونه سر په سر مزې دي او همېشه نعمتونه دي لکه الله چې حضرت آدم ته فرمايل : بېشکه مقرر دي تا ته چې نه به وږی کېږې په دې (جنت) کې او نه به بربنډ کېږې او بېشکه ته به نه تږی کېږې په دغه جنت کې او نه به دې ګرمي کيږي.

يعني چې په جنت کې څومره نعمتونه دي جنتيان به ددې استعمال صرف او صرف د خوند اخيستلو لپاره کوي.

## د جنت نهرونه

1 سورة طه آية ١١٨-١١٩

الله مونږ ته ددې خبر هم راکړی دی چې په جنت کې به نهرونه وي بیا رسول الله ﷺ هم د هغه نهرونو تفصیل کړی دی او هغه نهرونه چې څنګه دي او په حقیقت کې په څه ډول دي ددې ځواب بیا د رسول الله ﷺ یو حدیث کړی دی چې نه یوازې نهرونه بلکه د جنت ټول نعمتونه داسې دي چې نه سترګو لیدلي ، نه غوږونو آوریدلي او نه د کوم بشر په زړه باندې ور تېر شوي دي .

الله د جنت د نهرونو ذکر کوي او فرمايي : وَبَشِّرِ الَّذِين آمَنُواْ وَعَمِلُواْ الصالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ جَنات تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ كُلَّمَا رُزِقُواْ مِنْهَا مِن ثَمَرَةٍ رِّزْقاً قَالُواْ هَذَا الَّذِي رُزِقْنَا مِن قَبْلُ وَأُتُواْ بِهِ مُتَشَابِهاً وَلَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ. [1]

ترجمة : او زیری ورکړه (اې محمده ﷺ) هغو کسانو ته چې ایمان ئې راوړی دی (په ټولو مؤمن به شیانو) او کړي ئې دي ښه (عملونه) په دې چې بېشکه دوی ته جنتونه دي چې بهیږي لاندې (تر ما نیو او ونو) د هغو ویالې هر کله چې روزي ورکړه شي دغو (جنتیانو) ته له جنتونو څخه څه مېوه لپاره د خوړلو نو وايي دا (جنتیان) دا همغسې مېوه ده چې راکړل شوې وه مونږ ته پخوا له دې نه او رابه وړه شي دوی ته مېوه هم رنګه (او په خوند کې سره بدله) او وي به دوی ته په دغو (جنتونو) کې ښځې ښې پاکې او دوی به وي په دغو (جنتونو) کې همېشه .

أُوْلَئِكَ لَهُمْ جَناتُ عَدْنٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَيَلْبَسُونَ ثِيَابًا خُضْرًا مِّن سُندُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ مُّتَّكِئِينَ فِيهَا عَلَى الْأَرَائِكِ نِعْمَ الثَّوَابُ وَحَسُنَتْ مُرْتَفَقًا. [2]

---

1 سورة البقرة آية ٢٥

2 سورة الكهف آية ٣١

ترجمة : دغه (مؤمنان چې دي) شته دوی ته (هسې) جنتونه د تل هستوګنې چې بهيږي له لاندې ( د ونو او ماڼيو) د دوی (څلور قسمه) ويالې په لاس به کاوه شي دوی ته په دغه جنت کې وښي له سرو زرو (څو وښوولی شي چې اصلي او دائمي دولتمن او باثروته سړی دی؟) او آغوندي به دغه (جنتيان) جامې زرغونې له نريو وريښمو او له پريړو (غټو) وريښمو تکيه کوونکي به وي په دغو جنتونو کې پر تختونو باندې څومره ښه بدل دی (دا جنتونه او نعمتونه) او څومره ښه دي (دا جنتونه او نعمتونه) ځای د آرام.

**مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ فِيهَا أَنْهَارٌ مِّن مَّاء غَيْرِ آسِنٍ وَأَنْهَارٌ مِن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ وَأَنْهَارٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى وَلَهُمْ فِيهَا مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ وَمَغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ كَمَنْ هُوَ خَالِدٌ فِي النَّارِ وَسُقُوا مَاء حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَاءهُمْ (15) .** [1]

ترجمة : مثل صفت بيان د جنت هغه چې وعده ئې کړل شوې ده له پرهېزګارانو سره په هغه کې ويالې دي له اوبو چې نه به وي بد خوند (بدلېدونکي په مزه اوبو کې) او ويالې دي له شودو چې نه وي متغيرې (مزه ئې بلکه صاف او خوندوره ده) مزه د هغو او ويالې دي له شرابو چې مزه ورکوونکي دي (هغه) څښونکيو ته او ويالې دي له شاتو (ګبين) صفا کړيو شويو (له خيريو نه) (او شته) دوی ته په دغه (جنت) کې له هر راز (قسم) مېوو او مغفرت له (طرفه د) رب د دوی .

او جناتٍ تجري تحتها الأنهار عبارت په قرآن کريم کې ٤٢ ځله تکرار شوی دی چې دا ټول جزم او يقين پيدا کوي پدې چې په جنت کې نهرونه موجود دي چې د مسلمانانو سره يې وعده شوېده چې دوی به هلته لدې نه خوند او مزه اخلي .

[1] **سورة محمد**

رسول الله ﷺ یې هم مونږ ته قصه کړېده د معراج د شپې واقعه ده چې رأى أربعة أنهار يخرج من أصلها نهران ظاهران ونهران باطنان، فقلت: يا جبريل، ما هذه الأنهار؟ قال: أما النهران الباطنان: فنهران في الجنة وأما الظاهران: فالنيل والفرات.

ترجمة : رسول الله ﷺ ولیدل چې څلور نهرونه بهېدل دوه ښکاره وو او دوه پټ وو رسول الله ﷺ فرمایي ما له حضرت جبریل څخه پوښتنه وکوله چې دا نهرونه څه شی دی هغه راته وویل : دا پټ نهرونه د جنت دوه نهرونه دي او ښکاره نهرونه نیل او فرات دي .

حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : سيحان وجيحان والفرات والنيل كل من أنهار الجنة .[1]

ترجمة : دا سیحون او جیحون ، فرات او نیل د جنت له نهرونو څخه دي .

علماء فرمایي : ددې مطلب دادی چې ددې نهرونو اصل له جنت څخه دی لکه د انسان اصل چې له جنت څخه دی نو ددې امله اوس هغه اعتراض نه واقع کیږي چې په موجوده عصر کې څېړنو ښکاره کړېده چې دا هر نهر له معلوم ځای نه سر چینه اخلي او هغه ځایونه یې ښکاره دي نو رسول الله ﷺ ولې فرمایي چې دا له جنت څخه دي؟

نو همدا یې ځواب دی چې اصل یې له جنت څخه دی لکه د انسان اصل چې له جنت څخه دی اوس په زمکه کې اوسیږي.

حضرت انس بن مالک فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل

[1] رواه مسلم

: بينما أنا أسير في الجنة، إذ أنا بنهر حافتاه قباب الدر المجوف، قلت: ما هذا يا جبريل؟ قال: هذا الكوثر الذي أعطاك ربك، فإذا طيبه- أو طينه – مسك أذفر. [1]

ترجمة : کله چې زه په جنت کې تلم يو نهر ته ورسېدم چې په غاړو يې د ملغلرو ګنبدې وې چې مينځونه يې خالي وو ما وويل جبريل دا څه شی دي؟ هغه راته وويل دا هغه کوثر دی چې الله تاته درکړی دی چې ومې کتل د هغه بوی او يا د هغه خټه مسک وو .

حضرت انس بن مالک فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : أتدرون ما الكوثر؟ قالوا: الله ورسوله أعلم. قال: هو نهر وعدنيه الله عز وجل، عليه خير كثير. [2]

ترجمة : تاسې ته معلومه ده چې کوثر څه شی دی؟ صحابه وو ورته وويل : الله او د هغه رسول ﷺ وربانديې ښه پوهيږي رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه يو نهر دی الله يې لما سره وعده کړېده په هغه کې ډېر خير دی .

حضرت انس فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : أعطيت الكوثر، فإذا نهر يجري على ظهر الأرض، حافتاه قباب اللؤلؤ، ليس مسقوفاً، فضربت بيدي إلى تربته، فإذا تربته مسك أذفر، وحصباؤه اللؤلؤ . [3]

ترجمة : ماته کوثر راکړل شوی دی هغه د زمکې په مخ روان وو (په جنت کې) په غاړو يې ګنبدې وې د ملغلرو چې چت پرې نه وو جوړ ما د هغې په خاوره باندې لاس ولګولو چې ومې کتل خاوره يې يو ډول قيمتي مسک وو او د هغې شګې ملغلرې وې

---

1 صحيح البخاري
2 صحيح البخاري
3 رواه الامام احمد

.

د حضرت معاویة بن حیدة ؓ څخه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **إِنَّ فِي الْجَنَّةِ بَحْرَ الْمَاءِ وَبَحْرَ الْعَسَلِ وَبَحْرَ اللَّبَنِ وَبَحْرَ الْخَمْرِ ثُمَّ تُشَقَّقُ الْأَنْهَارُ بَعْدُ** .[1]

ترجمة : بېشکه په جنت کې د اوبو بحر دی ، د شاتو بحر دی د شودو بحر دی او د شرابو بحر دی بیا د هغې نه نهرونه بیلیږي .

د جنت ځینې نهرونه په لاندې ډول دي :

[1] **سنن الترمذي**

# نهر الكوثر

هغه نهر دى چې الله رسول الله ﷺ ته ورکړى دى ځينې صفتونه يې پورته تېر شول رسول الله ﷺ د هغه حوض په اړه فرمايي : **الكوثر نهر في الجنة حافتاه من الذهب ، والماء يجري على اللؤلؤ ، وماؤه أشد بياضا من اللبن ، وأحلى من العسل .** [1]

ترجمة : کوثر يو نهر دى په جنت کې غاړې يې د سرو زرو نه جوړې دي او په هغه کې اوبه په ملغلرو باندې بهيږي او اوبه يې تر شودو سپينې او له شاتو نه ډېرې خوږې دي .

علماء فرمايي کله چې حوض کوثر ياديږي نو دا به يو حوض وي چې په محشر کې به جوړيږي د رسول الله ﷺ امتيان به ورځي هلته به ورڅخه اوبه څښي او حوض کوثر ورته ځکه ويل کيږي چې اوبه به يې له هغه نهر نه وي چې په جنت کې دى ورته نهر کوثر ويل کيږي .

دا نهر الله رسول الله ﷺ ته ورکړى دى الله فرمايي : **إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ** . [2]

ترجمة : بېشکه په تحقيق سره درکړى دى مونږ تاته کوثر .

---

1 **مفاتيح الغيب**

2 **سورة الكوثر آية ١**

## د نهر الكوثر ځيني صفتونه پدې ډول دي :

- طرفونه يې د سرو زرو دي .
- اوبه يې په ملغلرو او ياقوتو باندې بهيږي .
- اوږدوالى يې د يوې مياشتې په مسافه باندې دى .
- مسافه يې تقريباً د شام د ايله نومي ځاى نه د يمن تر صنعاء نومي ځاى پورې ده.
- لوښي يې لكه ځلانده ستوري داسې دي او د اسمان له ستورو نه زيات دي .
- بوى يې له مسكو نه ښه دى او خاوره يې هم مسك دي .
- اوبه يې له شودو او واورې نه سپينې او له شاتو نه خوږې دي او تر مسكو نه خوشبويه دي .
- حوض كوثر به د جنت نه دوه نلكې تللې وي يوه به د سرو او بله د سپينو زرو وي .
- ددېنه به صرف د رسول الله ﷺ امتيان اوبه څښلى شي او څوك چې يو ځل ددېنه اوبه وڅښي بيا به تول عمر نه تږى كيږي .
- د كوثر نهر اوس هم موجود دى په يو حديث كې رسول الله ﷺ فرمايي : **وإني والله لأنظر إلى حوضي الآن** . [1]

ترجمة : داسې ده لكه زه چې همدا اوس خپل حوض ته ګورم .

---

[1] **صحيح البخاري**

# حوض كوثر ته به اول څوک ورځي؟

رسول الله ﷺ پدي اړه فرمايي : أولُ الناس وروداً عليه فقراء المهاجرين، الشعث رؤوساً، الدُنُس ثياباً، الذين لاينكحون المنعّمات، ولا تفتح لهم السُدد، الذين يعطُون الحق الذي عليهم، ولا يعطَون الذي لهم.[1]

ترجمة : حوض كوثر ته به اول هغه فقيران مهاجرين ورځي چې ببر سرونه يې وي ، خيرنې جامې يې وي ، هغه چې د مالدارو ښځو سره وادونه نه كوي ، په هغوى بنديزونه نه خلاصيږي ، هغه حق چې په دوى وي هغه وركوي او هغه حق چې ددوى په خلكو وي هغوى يې نه وركوي .

# نهر البيدخ

دا يو نهر دى په جنت كې شهيدان به پدې كې لمبيږي او كله چې شهيدان پكې غوټه وخوري چې ترينه را پورته شي لكه قمر داسې به ځليږي او په دنيا كې يې چې څومره تكليفونه ليدلي وي ټول به ورځخه هېر شوي وي .

حضرت انس بن مالک فرمايي رسول الله ﷺ يوه د مجاهدينو ډله په كوم كار پسې ليږلې وه يوه ښځه ورته راغله ورته ويل يې يَا رَسُولَ اللَّهِ رَأَيْتُ كَأَنِّي دَخَلْتُ الْجَنَّةَ فَسَمِعْتُ بِهَا وَجْبَةً ارْتَجَّتْ لَهَا الْجَنَّةُ فَنَظَرْتُ فَإِذَا قَدْ جِيءَ بِفُلَانِ وَفُلَانٍ حَتَّى عَدَّتْ اثْنَيْ عَشَرَ رَجُلًا وَقَدْ بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً قَبْلَ ذَلِكَ قَالَتْ فَجِيءَ بِهِمْ عَلَيْهِمْ ثِيَابٌ طُلْسٌ تَشْخُبُ أَوْدَاجُهُمْ قَالَ فَقِيلَ اذْهَبُوا بِهِمْ إِلَى نَهَرِ الْبَيْدَخِ أَوْ نَهَرِ الْبَيْذَجِ فَغُمِسُوا فِيهِ فَخَرَجُوا مِنْهُ وُجُوهُهُمْ كَالْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ قَالَ ثُمَّ أَتَوْا بِكَرَاسِيَّ مِنْ ذَهَبٍ فَقَعَدُوا عَلَيْهَا وَأُتِيَ بِصَحْفَةٍ مِنْ ذَهَبٍ فِيهَا بُسْرَةٌ فَأَكَلُوا مِنْهَا فَمَا يُقَلِّبُونَهَا لِشِقٍّ إِلَّا أَكَلُوا مِنْ فَاكِهَةٍ مَا أَرَادُوا وَأَكَلْتُ مَعَهُمْ.

[1] صحيح الجامع

ترجمة : یا رسول الله ﷺ ما په خوب کې ولیدل چې زه جنت ته ننوزم یو نا څاپي اواز مې واورېدو چې جنت ورته جتکه وخوړه ما ورته وکتل چې ومې لیدل فلانی، فلانی ، فلانی دولس کسان یې حساب کړل چې دا راوستل شول او ددېنه مخکې رسول الله ﷺ د مجاهدینو یوه ډله لېږلې وه دا دولس کسان په هغې کې وو بیا دا کسان راوستل شول چې زړې جامې یې په ځان وې د غاړې له رګونو یې وینې روانې وې وویل شول چې دا نهر البیدخ او یا نهر البیدج ته ورولئ هلته وروستل شول په هغه کې غوټه کړل شول بیا ورڅخه را وویستل شول مخونه یې لکه د سپوږمي داسې وو په هغه شپه چې پوره وي بیا ورته د سرو زرو چوکیانې راوړل شوې دوی په هغې باندې کېناستل او کاسې ورته راوړل شوې چې د سرو زرو وې تازه خورما پکې وې دوی د هغې نه خوراک وکولو دوی به چې اړخ بدلولو نو د هغوی نه به یې چې څه خوښه وه خوراک کولو او ما هم ورسره خوراک وکولو .

حضرت انس بن مالک فرمایي بیا د مجاهدینو له هغه ډلې څخه خبر راغلو رسول الله ﷺ ته یې وویل : زمونږ کارونه خو داسې او داسې شول او فلانی فلانی دولس کسان یې هغه کسان شمار کړل چې هغه مبارکې صحابیې شمار کړي وو دا شهیدان شول .

رسول الله ﷺ حکم وکولو هغه ښځه یو ځل بیا زما مجلس ته حاضره کړئ هغه چې راغله ورته یې وویل : ته دا خوب یو ځل بیا ووایه هغې مبارکې بیا ورته خپل خوب وویلو او هماغه دولس کسان چې دې په خوب کې لیدلي وو هغه شهیدان شوي وو .

## نهر بارق

دا په جنت کې يو نهر دى شهيدان لدې سره کينى او هغوى ته همدلته د دوى رزق راځي حضرت عبد الله بن عباس فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **الشُّهَدَاءُ عَلَى بَارِقٍ - نَهَر بِبَابِ الْجَنَّةِ - فِي قُبَّةٍ خَضْرَاءَ يَخْرُجُ عَلَيْهِمْ رِزْقُهُمْ مِنْ الْجَنَّةِ بُكْرَةً وَعَشِيًّا.** [1]

ترجمة : شهيدان به د بارق د نهرسره وي دا د جنت په دروازه کې يو نهر دى په شنه ګنبده کې دوى ته د دوى رزق راوزي له جنت نه په سحر او ماښام کې .

## د جنت چينې

د نهرونو سره سره په جنت کې د جنتيانو د زياتو لذتونو او راحتونو لپاره چينې هم شته چې هرڅاڅکى يې د الله يو داسې نعمت دى چې د ټولې دنيا نعمتونه ورسره نشي برابرېدلى او ددې چينو ذکر په قرآن کريم کې په مختلفو ځايونو کې راغلى دى د مثال په ډول :

**إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ (45) .** [2]

ترجمة : بېشکه ځان ساتونکي (له متابعت د ابليس نه) په جنتونو کې به وي او په چينو کې به وي.

**إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي مَقَامٍ أَمِينٍ (51) فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ (52) .** [3]

ترجمة : بېشکه چې متقيان به په ځاى د امن کې وي (له ټولو مکروهاتو) په جنتونو او چينو کې .

---

1 **رواه الامام احمد**
2 **سورة الحجر آية ٤٥**
3 **سورة الدخان**

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ (15) .[1]

ترجمة : بېشكه وېرېدونكي له الله او ځان ساتونكي له معاصيو به په جنت كې وي او په چينو كې به وي يعني څښونكي د اوبو د دې چينو به وي.

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي ظِلَالٍ وَعُيُونٍ (41)[2]

ترجمة : بېشكه هغه كسان چې ځانونه يې ساتلي له متابعت د شيطان نه په سيوري كې به وي او په چينو كې به وي (د جنت) .

فيها عَيْنٌ جارية .[3]

ترجمة : په دغه (جنت) كې چينه ده جاري بهېدونكې

1 سورة الذاريات
2 سورة المرسلات آية ٤١
3 سورة الغاشية آية ١٢

# جنتي چينه عين الكافور

دا چينه هم په جنت كې ده او غوره ذائقه او غوره اوبه يې دي الله يې په قرآن كريم كې ذكر كړى دى فرمايي : إِنَّ الْأَبْرَارَ يَشْرَبُونَ مِن كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُورًا (5) عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ اللَّهِ يُفَجِّرُونَهَا تَفْجِيرًا (6) .[1]

ترجمة : بېشكه ابرار (نيكان) څښي (په جنت كې) له جامونو د شرابو څخنې چې وي ګډ له هغو سره (جنتي) كافور چينه چې څښي به له هغې څخه (نېك) بندګان د الله چې بيا ئې به (مؤمنان) دغې (چينې) لره (هر چېرته چې ئې خوښه وي بېول) وفا كوي (ابرار) په (هغه) نذر سره (چې ئې واجب كړى وي په طاعت د الله كې پر ځانونو خپلو باندې) او ويريږي (ابرار) له هغې ورځې چې شر ئې ښكاره او تيت (څرګند) دى .
او ځينې علماء فرمايي چې دا هم په جنت كې له يوې چينې څخه راوزي چې كافور ورته ويل كيږي او ددې بوى ډېر ښكلى دى او ښې اوبه دي او په دنيا كې هم چې كوم شي ته كافور ويل كيږي د ډېرو زياتو فايدو لرونكى شى دى.

# جنتي چينه عين التسنيم

دا هم په جنت كې چينه ده الله فرمايي : إِنَّ الْأَبْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ * عَلَى الْأَرَائِكِ يَنظُرُونَ * تَعْرِفُ فِي وُجُوهِهِمْ نَضْرَةَ النَّعِيمِ * يُسْقَوْنَ مِن رَّحِيقٍ مَّخْتُومٍ * خِتَامُهُ مِسْكٌ وَفِي ذَلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنَافِسُونَ * وَمِزَاجُهُ مِن تَسْنِيمٍ * عَيْناً يَشْرَبُ بِهَا الْمُقَرَّبُونَ .[2]

ترجمة : بېشكه نيكان خامخا په نعيم لوى نعمت د (جنت) كې دي پر تختونو باندې ناست ګوري (د الله لقاء او د جنت نعماء (او ترې مزه به اخلي

---

[1] سورة الدهر (الانسان)
[2] سورة المطففين آية ٢٢-٢٨

يا به ګوري دوزخيانو ته) پېژني به ته (اې کتونکيه!) په مخونو د دوی کې تازګي د نعيم (تنعم د جنت) ور ځښولی شي (هغوی ته) له خالصو شرابو مهر کړيو شويو ځخه چې مهر به يې مشک وي او په دغو (شرابو او نورو جنتي نعمتونو) باندې پس بايد دي چې رغبت وکړي رغبت کوونکي (په کولو د نېکو عملونو او پرېښودلو د بدو عملونو) او ګډون د هغه (شرابو دی له اوبو د) تسنيم ځخه دا (تسنيم) يوه چينه ده (په جنت کې) چې ځښي به له هغې ځخه د (الله) مقربان .

## جنتي چينه عين السلسبيل

دا په جنت کې بله چينه ده الله ددې ذکر کوي او فرمايي : وَيُسْقَوْنَ فِيهَا كَأْساً كَانَ مِزَاجُهَا زَنجَبِيلاً * عَيْناً فِيهَا تُسَمَّى سَلْسَبِيلاً .[1]

ترجمة : او ورځښول کيږي به جنتيانو ته په جنت کې جامونه د شرابو چې وي به ګډ له (پاکو شرابو د) هغه سره (لپاره د خوشبويي جنتي) زنجبيل چينه په دغه (جنت کې چې) نوم ئې اېښودلی شوی دی په سلسبيل سره (چې د حلقه اسانه لذيذه تيريږي).

[1] سورة الدهر (الانسان) آية ١٧-١٨

# جنتي چينه عين زنجبيل

دا هم د جنتيانو ځښاک دى الله فرمايي : وَيُسْقَوْنَ فِيهَا كَأْسًا كَانَ مِزَاجُهَا زَنجَبِيلًا زنجبيل الله د جنت له نعمتونو څخه شمار كړى دى دا په دنيا كې هم ډېرې فايدې لري او په ډېرو دوا ګانو كې ګډيږي او په مخكني طب كې زنجبيل ته دواء عظيم (لويه دوا) ويله كېده نو چې په دنيا كې داسې حيثيت لري دا به په جنت كې ځنګه وي؟ الله دې د ټولو مسلمانانو قسمت پكې وكوي .

د جنت په ټولو د ځښلو شيانو كې يو ډول خوند او لذت پروت دى چې نه پكې نشه شته او نه پكې داسې څه شته چې انسان داسې مست كړي چې بيا غير ارادي حركتونه او خبرې ورڅخه كيږي بلكه د جنت په ټولو شيانو كې يو كيفيت به وي چې انسان ته به خوشحالي او تازګي وركوي او نور څه د نشې په ډول اثرات به وربانډې نه ښكاره كيږي الله د زمونږ ټولو مسلمانانو قسمت پكې وكوي.

# په جنت كې مارغان او حيوانات

په جنت كې به مارغان او نور حيوانات هم وي چې د هغې په اړه پوره علم هغه ذات لره دى چې پيدا كړي يې دي خو په ځينې ځايونو كې يې په قرآن كريم او احاديثو كې ذكر راغلى دى لكه الله چې فرمايي : وَلَحْمِ طَيْرٍ مِّما يَشْتَهُونَ.[1]

ترجمة : او دوى ته به د مارغانو غوښه وركول كيږي د كوم شي چې اشتهاء لري .

نو جنتيانو ته به د جنتي مارغانو غوښې وركول

[1] سورة الواقعة آية ٢١

کیږي د کوم شي چې هغوی اشتهاء لري او خوراک یې کول غواړي .

همدارنګه رسول الله ﷺ چې د نهر کوثر په اړه خبرې کولې هلته یې هم مارغان یاد کړي وو حضرت انس بن مالک فرمایي له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې دا کوثر څه شی دی؟ رسول الله ﷺ په ځواب کې ورته وفرمایل : **ذاك نهر أعطانيه الله – يعني في الجنة – أشد بياضاً من اللبن، وأحلى من العسل، فيه طير أعناقها كأعناق الجزر .** [1]

ترجمة : دا یو نهر دی الله ماته راکړی دی یعنې په جنت کې تر شودو زیات سپین او تر شاتو زیات خوږ دی په هغه کې مارغان دي چې داسې غاړې یې وي لکه د اوښانو .

په جنت کې به اوښانې هم وي حضرت عبد الله بن مسعود فرمایي : **جاء رجل بناقة مخطومة، فقال: يا رسول الله هذه الناقة في سبيل الله. فقال: لك بها سبعمائة ناقة مخطومة في الجنة .** [2]

ترجمة : یو کس رسول الله ﷺ ته راغلو یوه مهار کړل شوې اوښه یې ورته راوسته ورته یې وویل دا اوښه د الله په لاره کې ده رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ددې په بدل کې به الله تاته اوه سوه اوښانې درکړي ټولې به مهار کړل شوې وي په جنت کې .

په یو بل روایت کې دي : **جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ : يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفِي الْجَنَّةِ خَيْلٌ فَإِنِّي أُحِبُّ الْخَيْلَ ؟ قَالَ : " إِنْ أَدْخَلَكَ اللَّهُ الْجَنَّةَ فَمَا تَشَاءُ أَنْ تَرْكَبَ فَرَسًا مِنْ يَاقُوتَةٍ حَمْرَاءَ لَهَا جَنَاحَانِ تَطِيرُ بِكَ فِي الْجَنَّةِ حَيْثُ**

---

1 **سنن الترمذي**
2 **اخرجه ابو نعيم فى الحلية**

شِئْتَ " فَقَالَ الْأَعْرَابِيُّ : يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفِي الْجَنَّةِ إِبِلٌ ؟ قَالَ : " يَا أَعْرَابِيُّ ، إِنْ أَدْخَلَكَ اللَّهُ الْجَنَّةَ فَإِنَّ لَكَ فِيهَا مَا اشْتَهَتْ نَفْسُكَ وَلَذَّتْ عَيْنُكَ . [1]

ترجمة : يو كس رسول الله ﷺ ته راغلو رسول الله ﷺ ته يې وويل : يا رسول الله زما آسونه خوښ دي په جنت کې آسونه شته؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : که ته الله جنت ته ننه ايستلې آيا ته نه غواړې چې په داسې آس باندې سپور شې چې د سرو ياقوتو څخه وي او دوه وزرونه ولري هغه ته آلوزوي په جنت کې هرچېرته چې ستا خوښه وي بيا يو کوچي ورته ويل يا رسول الله ﷺ په جنت کې اوښان شته؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : اې کوچيه که ته الله جنت ته ننه ايستلې هلته ستا لپاره هرهغه څه شته چې ستا ورته زړه کيږي او تاته خوند درکوي .

## د جنت کورونه

قرآن کريم مونږ ته ددې خبر راکړی دی چې نېکان مؤمنان به جنت ته ځي او هلته به همېشه وي بيا يې مونږ ته دا هم ويلي چې جنت يوازې باغ او باغيچه نه ده چې ګلونه ميوې او ونې نهرونه به وي پکې بلکه هلته د جنتيانو لپاره بنګلې دي د اوسېدلو لپاره کورونه دي خيمې دي چې هلته به مؤمنان پکې اوسيږي د مثال په ډول الله په يو ځای کې فرمايي : وَعَدَ اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ أَكْبَرُ ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ (72) . [2]

ترجمة : وعده کړېده الله له نارينه وو مؤمنانو او له ښځو مؤمناتو سره د جنتونو چې بهيږي له لاندې (د مانيو او ونو) د هغو (څلور قسمه)

---

[1] صفة الجنة لابن ابي الدنيا
[2] سورة التوبة

ويالې تل به وي دوی په دغو (جنتونو) کې او (وعده کړې ده الله ) د ځایونو پاکو (چې ثابت دي) په جنتونو د تل اوسېدلو کې او رضاء له (جانبه د) الله ډېره لويه ده (له جنتونو او نعمتونو او نورو څخه) دغه (رضاء د الله ) هم دغه بری دی ډېر لوی.

دا کورونه چې الله په جنت کې جنتيانو ته جوړ کړي دي هغه مساکن طيبة دي چې ښه جوړ دي او هستوګنې لپاره ښکلي دي امام قرطبي ددې کورونو په اړه فرمايي : **إنَّها قصور من الزبرجد والدُّر والياقوت يفوح طيبها من مسيرة خمسمائة عام .** [1]

ترجمة : دا بنګلې دي د زبرجدو ملغلرو ياقوتو چې د هغې ښه بوی د پنځو سوو کلونو تر مسافې پورې خپرېږي .

---

[1] **تفسير قرطبي**

# د جنتيانو کوټې

همدارنګه قرآن کريم فرمايي چې د جنتيانو لپاره به کوټې وي ځينې به لوړې او ځينې به ټيټې وي الله فرمايي : وَمَا أَمْوَالُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُم بِالَّتِي تُقَرِّبُكُمْ عِندَنَا زُلْفَى إِلَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَأُوْلَئِكَ لَهُمْ جَزَاء الضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوا وَهُمْ فِي الْغُرُفَاتِ آمِنُونَ (37) [1]

ترجمة : او نه دي دغه مالونه ستاسې او نه اولاد ستاسې داسې څيز چې نژدې کوي تاسې په نزد زمونږ نژدې کول مګر (نژدې کوي له تاسې) هر هغه څوک چې ايمان راوړي او کړي ئې وي ښه (عملونه) پس دغه (مؤمنان چې دي) شته دوی ته جزاء دوه چنده په سبب د هغه (نيکيو) چې کړي دي دوی او دوی به په ماڼيو (د جنت کې مطمئن) وي له هر آفته.

په بل ځای کې الله فرمايي : وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَنُبَوِّئَنَّهُم مِّنَ الْجَنَّةِ غُرَفًا تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا نِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ (58) . [2]

ترجمة : او هغه (کسان) چې ايمان ئې راوړی دی او کړي ئې دي ښه (عملونه) خامخا ځای به ورکړو دوی ته له جنته په جګو ماڼيو کې چې بهيږي لاندې له (ونو او ماڼيو د) هغو ويالې (څلور) حال دا چې تل به اوسيږي په دغو (ماڼيو کې) ښه دی اجر د دغو عمل کوونکو (دا جنت) .

د جنت کوټې چې د مؤمنانو لپاره تيارې کړل شوي دي د امن او سکون څخه به ډکې وي هلته به جنتيانو ته هيڅ قسم تکليف نه وي نه به څه بيماري وي او نه به له کوم شي نه خطر او ويره

---

[1] سورة السبا
[2] سورة العنكبوت

وي او نه به خفګان او نه به فکرونه او غمونه وي او نه به ددې خطر وي چې څوک به راشي دا تول عیبونه ددې دنیا په کوټو کې وي په بل ځای کې الله ددې کوټو په اړه بیا فرمایي : لَكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ غُرَفٌ مِّن فَوْقِهَا غُرَفٌ مَّبْنِيَّةٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَعْدَ اللَّهِ لَا يُخْلِفُ اللَّهُ الْمِيعَادَ (20) .[1]

ترجمة : لیکن هغه کسان چې ویریږي له رب خپله شته دوی ته ماڼی (په جنت کې) چې له پاسه د هغې نورې ماڼی بنا کړل شوې دي چې بهیږي لاندې د ماڼیو (او ونو د هغې څلور قسمه) ویالې (وعده کړیده) وعده کول د الله نه کوي مخالفت الله له وعدې خپلې .

آیة ښکاره کوي چې د جنتیانو لپاره به کوټې وي هغه کوټې به په یوه لین نه وي جوړې ځینې به لوړې وي د نورو په سر به ور جوړې شوې وي لاندې به ترینه نهرونه بهیږي .

حضرت جابر بن عبد الله فرمایي رسول الله ﷺ مونږ ته فرمایل : أَلَا أُحَدِّثُكُمْ بِغُرَفِ الْجَنَّةِ ؟ " ، قَالَ : قُلْتُ : بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ ، بِأَبِينَا أَنْتَ وَأُمِّنَا ، قَالَ : " إِنَّ فِي الْجَنَّةِ غُرَفًا مِنْ أَصْنَافِ الْجَنَّةِ كُلُّهَا يُرَى ظَاهِرُهَا مِنْ بَاطِنِهَا وَبَاطِنُهَا مِنْ ظَاهِرِهَا ، فِيهَا مِنَ النِّعَمِ وَالْمَلَذَّاتِ وَالشَّرَفِ مَا لَا عَيْنٌ رَأَتْ وَلَا أُذُنٌ سَمِعَتْ ، وَلا خَطَرَ عَلَى قَلْبِ بَشَرٍ " ، قَالَ : قُلْتُ : يَا رَسُولَ اللَّهِ ، وَلِمَنْ هَذِهِ الْغُرَفُ ؟ قَالَ : " لِمَنْ أَفْشَى السَّلَامَ ، وَأَطْعَمَ الطَّعَامَ ، وَأَدَامَ الصِّيَامَ ، وَصَلَّى بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ " ، قَالَ : قُلْتُ : يَا رَسُولَ اللَّهِ ، وَمَنْ يُطِيقُ ذَلِكَ ؟ قَالَ : " أُمَّتِي تُطِيقُ ذَاكَ ، وَسَأُخْبِرُكَ عَنْ ذَاكَ : مَنْ لَقِيَ أَخَاهُ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ أَوْ رَدَّ عَلَيْهِ فَقَدْ أَفْشَى السَّلَامَ ، وَمَنْ أَطْعَمَ أَهْلَهُ وَعِيَالَهُ مِنَ الطَّعَامِ حَتَّى أَشْبَعَهُمْ فَقَدْ أَطْعَمَ الطَّعَامَ ، وَمَنْ صَامَ شَهْرَ رَمَضَانَ وَمِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَقَدْ أَدَامَ الصِّيَامَ ، وَمَنْ صَلَّى الْعِشَاءَ الْآخِرَةِ وَصَلَاةَ الْغَدَاةِ فِي جَمَاعَةٍ فَقَدْ صَلَّى بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ "

[1] سورة الزمر

ترجمة : زه تاسې ته د جنت د کوټو خبرې ونه کوم؟ دی فرمايي ما ورته وويل هو راته يې وکوه يارسول اللهﷺ زمونږ مور او پلار تانه زار شه رسول اللهﷺ وفرمايل : بېشکه په جنت کې کوټې دي د جنت له قسم نه د ټولو د ننه د بهر نه او بهر يې د ننه څخه ښکاره کيږي په هغه کې نعمتونه او لذتونه دي او عزت دی چې نه سترګو ليدلی نه غوږونو آورېدلی او نه د کوم انسان په زړه کې ورتاو شوی دی فرمايي ما ورته وويل : يا رسول الله ﷺ دا کوټې د چا لپاره دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : د هغه چا لپاره دي چې سلام خپور کړي ، خلکو ته طعان ورکړي ، همېشه روژې نيسي او د شپې په داسې حالت کې مونځ کوي چې خلک ويده وي ما ورته وويل : يا رسول الله ﷺ دا د چا په وس پوره ده؟ رسول الله ﷺ وويل : زما د امت په وس پوره ده او زه به ددې خبر درکړم هغه څوک چې د بل ورور سره مخامخ شي په هغه سلام واچوي او يا د هغه د سلام ځواب ورکړي نو ده سلام خپور کړو هغه څوک چې خپل اهل او اولاد ته طعام ورکړي ترڅو هغوی ماړه شي دې کس طعام ورکړو هغه څوک چې د رمضان روژه ونيسي او د هرې مياشتې دری ورځې روژه ونيسي دې کس همېشه روژه ونيوله هغه څوک چې د ماسخوتن او سحر مونځ په جمع وکوي دې کس ټوله شپه مونځ پداسې حالت کې وکولو چې خلک ويده وو .

# د جنتیانو خیمې

د کوټو او بنګلو او تعمیرونو سره سره د جنتیانو به خیمې هم وي ځینې خلک داسې وي په خاصه توګه عرب چې په خیمه کې ژوند ورته ډېر ښه ښکاره کیږي او په اوس وخت کې چې عرب زيات مالدار دي کله کله ځي په دښته کې خیمه وهي او د خپل وخت نه هلته مزه اخلي نو د هغه کسانو لپاره چې د خیمې ژوند یې خوښیږي الله په جنت کې خیمي هم پیدا کړي دي البته هغه خیمې ددنیا د خیمو سره تش په نوم کې شریکې دي دا خیمې چې د رخت نه جوړې په ډانګیو او په پړیو باندې ولاړې وي هغه خیمې به داسې نه وي هغه به د ملغلرې نه جوړه وي ټوله خیمه به یوه ملغلره وي مینځ به یې خالي وي دا به د جنتي خیمه وي لږ وروسته پدې اړه حدیث راځي ان شاء الله د جنت د خیمو ذکر په قرآن کریم کې هم شوی دی الله فرمایي : **حُورٌ مَّقْصُورَاتٌ فِي الْخِيَامِ (72) .** [1]

ترجمة : حورې به وي پټې کړل شوې په خېمو کې .

حضرت ابو سعید الخدري فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **إِنَّ لِلْمُؤْمِنِ فِي الْجَنَّةِ لَخَيْمَةً مِنْ لُؤْلُؤَةٍ وَاحِدَةٍ مُجَوَّفَةٍ طُولُهَا سِتُّونَ مِيلًا لِلْمُؤْمِنِ فِيهَا أَهْلُونَ يَطُوفُ عَلَيْهِمْ الْمُؤْمِنُ فَلَا يَرَى بَعْضُهُمْ بَعْضًا .** [2]

ترجمة : بېشکه د مؤمن لپاره په جنت کې یوه خیمه وي چې یوه ملغلره به وي چې مینځ یې خالي وي اوږدوالی یې شپېته میله وي د مؤمن لپاره په هغه کې اهل وي دی به هغوی ته ورځي هلته به یو بل نه سره ویني (یعني سره ددې چې پدې لویه خیمه کې به رڼا وي لکن بیا به هم دا مؤمن نه

---

1 **سورة رحمن**
2 **صحیح مسلم**

ښکاره کیږي چې هغه اهل ته ورشي څنګه ورځي او داسې نور)

په بل حدیث کې الفاظ لږ بدل دي رسول الله ﷺ فرمايي : **إن في الجنّة خيمةٌ من لؤلؤة مجوّفة عرضها ستون ميلاً في كل زاوية منها أهلٌ ما يرون الآخرين يطوف عليهم المؤمن** . [1]

ترجمة : بېشکه په جنت کې یوه خیمه ده له ملغلرې چې مینځ یې خالي دی پلنوالی یې شپېته میله دی په هر کونج کې یې اهل وي چې دا بل اهل ورته نه ښکاره کیږي مؤمن به هلته ورځي .

په پورتنیو احادیثو کې ښکاره شوه چې رسول الله ﷺ فرمایل : د جنت خیمه به د رختونو اویا د اوښانو له وړیو څخه نه وي جوړه شوې بلکه د قیمتي ملغلرې نه به جوړه وي چې نه به یې په پړي تړلو ته ضرورت کیږي او نه به یې په مینځ کې ورته د ډانګ درولو اړتیا وي او نه به ددې وېره وي چې اوبه به ترې را تویې شي او نه به ددې غم وي چې را وبه غورځیږي .

## د جنت فرشونه او تختونه

د جنتیانو کورونه به په ورېښمو باندې فرش کړل شوي وي تختونه به پکې ایښي وي جنتي به په هغه تخت باندې کیني او تکیه به کوي مخې ته به یې نعمتونه ایښي وي ددې حالت ذکر الله مونږ ته داسې کوي : **فِيهَا سُرُرٌ مَّرْفُوعَةٌ (13) وَأَكْوَابٌ مَّوْضُوعَةٌ (14) وَنَمَارِقُ مَصْفُوفَةٌ (15) وَزَرَابِيُّ مَبْثُوثَةٌ (16)** . [2]

ترجمة : په دغه (جنت) کې دي تختونه (د پاره د کېناستلو د جنتیانو) لوړ عالیشان او جامونه

---

[1] **متفق عليه**
[2] **سورة الغاشية**

اېښودلي شوي (په اندازه د ښځونکيو خپلو) بالښتونه اېښود شوي په درجه ځنګ په ځنګ (جنتيانو ته) او فرشونه فاخره غوړول شوي.

په بل ځای کې الله فرمايي : أُولَٰئِكَ لَهُمْ جَنَّاتُ عَدْنٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَيَلْبَسُونَ ثِيَابًا خُضْرًا مِنْ سُنْدُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ مُتَّكِئِينَ فِيهَا عَلَى الْأَرَائِكِ ۚ نِعْمَ الثَّوَابُ وَحَسُنَتْ مُرْتَفَقًا . [1]

ترجمة : دغه (مؤمنان چې دي) شته دوی ته (هسې) جنتونه د تل هستوګنې چې بهيږي له لاندې ( د ونو او ماڼيو) د دوی (ځلور قسمه) ويالې په لاس به کاوه شي دوی ته په دغه جنت کې وښي له سرو زرو (ځو وښولی شي چې اصلي او دائمي دولتمن او باثروته سړی دی؟) او آغوندي به دغه (جنتيان) جامې زرغونې له نريو وريښمو او له پريړو (غټو) وريښمو تکيه کوونکي به وي په دغو جنتونو کې پر تختونو باندې ښومره ښه بدل دی (دا جنتونه او نعمتونه) او ښومره ښه دي (دا جنتونه او نعمتونه) ځای د آرام.

مُتَّكِئِينَ عَلَى فُرُشٍ بَطَائِنُهَا مِنْ إِسْتَبْرَقٍ . [2]

ترجمة : (جنتيان به) تکيه کوونکي وي په هسې فرشونو باندې چې استرونه د هغو به له وريښمو کلکو ټخه وي .

وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِمْ مِنْ غِلٍّ إِخْوَانًا عَلَى سُرُرٍ مُتَقَابِلِينَ . [3]

ترجمة : او وبه باسو (لرې به کړو) هر هغه چې په زړونو د دغو (جنتيانو) کې دي له کينې ټخه حال دا چې (لکه) ورونه به وي سره ناست به وي پر تختونو مخامخ يو بل ته.

---

1 سورة كهف آية ٣١
2 سورة رحمن آية ٥٤
3 سورة الحجر آية ٤٧

مُتَّكِئِينَ عَلَى سُرُرٍ مَصْفُوفَةٍ وَزَوَّجْنَاهُمْ بِحُورٍ عِينٍ.[1]

ترجمة : (جنتيان به) تكيه كوونكي وي په تختونو باندې چې صف صف به كېښودل شوي وي او مونږ به دوى ته په نكاح كړو حورې غټې سترګې ښائسته .

عَلَى سُرُرٍ مَوْضُونَةٍ * مُتَّكِئِينَ عَلَيْهَا مُتَقَابِلِينَ .[2]

ترجمة : چې تكيه وهونكي به وي (جنتيان) په هغو (تختونو) باندې مخامخ كېناستونكي يو بل ته .

هُمْ وَأَزْوَاجُهُمْ فِي ظِلَالٍ عَلَى الْأَرَائِكِ مُتَّكِئُونَ (56) لَهُمْ فِيهَا فَاكِهَةٌ وَلَهُمْ مَا يَدَّعُونَ (57).[3]

ترجمة : دغه (جنتيان) او ښځې د دوى به په سيوريو كې (ناست وي) پر تختونو باندې تكيه وهونكي به وي وي به دوى ته په دغه جنت كې (انواع د) مېوو او وي به دوى ته هر هغه شى چې غواړي ئې دوى (او آرزو ئې كوي) .

# د جنت لوښي

په جنت كې به جنتيان لوښي هم كاروي په هغه كې به نعمتونه خوري او په هغې كې به ورته نعمتونه ډول ډول څښاک او خوراک كېښودل كيږي خو هغه لوښي به هم د دنيا له لوښيو څخه ډېر بدل وي هغه به ټول د سرو او سپينو زرو او صافې شيشې وي الله يې په يو ځاى كې صفت كړى دى چې په هغې كې څه وي نفسونه به هغه غواړي الله په مختلفو ځايونو كې د هغه لوښو ذكر كړى دى

[1] سورة الطور آية ٢٠
[2] سورة الواقعة آية ١٥-١٦
[3] سورة يس

چې په جنت کې وي الله فرمايي : يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِصِحَافٍ مِنْ ذَهَبٍ وَأَكْوَابٍ وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنْفُسُ وَتَلَذُّ الْأَعْيُنُ وَأَنْتُمْ فِيهَا خَالِدُونَ .[1]

ترجمة : ګرځولی کیږي به (د غلمانو له خوا) پر دغو جنتیانو کاسې ګلاسونه له سرو زرو څخه او (طلايي) صراحې ګانې او (وي به دوی ته) په دغه (جنت) کې هغه شیان چې خواهش کوي د هغوی نفسونه (د دوی) او چې خوند اخلي سترګې (د دوی ترې) او (ويل کیږي به دوی ته) تاسې به پدې جنت کې همېشه وئ .

وَيُطَافُ عَلَيْهِمْ بِآنِيَةٍ مِنْ فِضَّةٍ وَأَكْوَابٍ كَانَتْ قَوَارِيرَا قَوَارِيرَ مِنْ فِضَّةٍ قَدَّرُوهَا تَقْدِيرًا .[2]

ترجمة : او ګرځولی به شي پر دغو نېکانو باندې (په دغه جنت کې) جامونه له سپینو زرو او ګلاسونه صراحي چې وي به (دغه ظروف) په شان د شیښو هسې شیښې چې له سپینو زرو به وي (صاف به وي د شیښو په شان چې ظاهر به یې له باطن او باطن به یې له ظاهره ښکاره کیږي) په اندازه کړي به وي هغه (جامونه ساقیانو د جنت جنتیانو ته) اندازه کول .

يَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُخَلَّدُونَ بِأَكْوَابٍ وَأَبَارِيقَ وَكَأْسٍ مِنْ مَعِينٍ . 3

ترجمة : ګرځي به په دوی باندې (د پاره د خدمت) هلکان تل پاتې کېدونکي (په هلکوالي سره) په ګلاسونو او په کوزو سره او په کاسو لوښيو سره له صافو پاکو شرابو.

حضرت ابي موسی فرمايي رسول الله ﷺ په يو حديث کې چې د جنت ذکر يې پکې کاوه فرمايل : » :جَنَّتَانِ

[1] سورة الزخرف آية ٧١
[2] سورة الدهر (الانسان) آية ١٥-١٦
[3] سورة الواقعة آية ١٧-١٨

مِنْ فِضَّةٍ، آنِيَتُهُمَا وَمَا فِيهِمَا، وَجَنَّتَانِ مِنْ ذَهَبٍ آنِيَتُهُمَا وَمَا فِيهِمَا (دوه جنتونه به د سپینو زرو وي لوښي او هرڅه چې په هغې کې وي او دوه جنتونه به د سرو زرو وي لوښي او هرڅه چې په هغه کې وي).

حضرت حذیفة بن الیمان فرمایي ما له رسول الله ﷺ څخه واورېدل چې هغه فرمایل: لا تَلْبَسُوا الحَرِيرَ وَلا الدِّيبَاجَ، وَلا تَشْرَبُوا فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالفِضَّةِ، وَلا تَأْكُلُوا فِي صِحَافِهَا، فَإِنَّهَا لَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَلَنَا فِي الآخِرَةِ .[1]

ترجمة: وریښم او دیباج (په وریښمو کې یو خاص قسم دی) مه آغوندئ ، د سرو او سپینو زرو په لوښو کې څښاک مه کوئ او د هغې په کاسو کې خوراک مه کوئ ځکه دا شیان د کفارو لپاره دي پدې دنیا کې او زمونږ د پاره دي په آ خرت کې.

## د جنت جامې

په جنت کې به جنتیان بهترینې قیمتې جامې آغوندي قسم قسم قیمتي وریښم او نور شیان به په خپلو جامې کې استعمالوي چې په دنیا کې یې چا د ساري تصور هم نه وي کړی او په خپلو جامو کې به د خپل اصلي قیمت او اصالت د پاسه ډول ډول ملغلرې او حلیات لګوي چې نورې به هم ورسره ښائسته کیږي الله په قرآن کریم کې د جنتیانو د جامو ذکر کړی دی په یو ځای کې فرمایي: أُوْلَئِكَ لَهُمْ جَنَّاتُ عَدْنٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهِمُ الْأنْهَارُ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَيَلْبَسُونَ ثِيَابًا خُضْرًا مِّن سُندُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ مُّتَّكِئِينَ فِيهَا عَلَى الْأَرَائِكِ نِعْمَ الثَّوَابُ وَحَسُنَتْ مُرْتَفَقًا .[2]

ترجمة: دغه (مؤمنان چې دي) شته دوی ته (هسې)

---

[1] متفق علیه
[2] سورة الکهف آية ٣١

جنتونه د تل هستوګنې چې بهيږي له لاندې ( د ونو او ماڼيو) د دوی (څلور قسمه) ويالې په لاس به کاوه شي دوی ته په دغه جنت کې وښي له سرو زرو (ځو وښوولی شي چې اصلي او دائمي دولتمن او باثروته سړی دی؟) او آغوندي به دغه (جنتيان) جامې زرغونې له نريو وريښمو او له پريړو (غټو) وريښمو تکيه کوونکي به وي په دغو جنتونو کې پر تختونو باندې ځومره ښه بدل دی (دا جنتونه او نعمتونه) او ځومره ښه دي (دا جنتونه او نعمتونه) ځای د آرام.

مُتَّكِئِينَ عَلَى رَفْرَفٍ خُضْرٍ وَعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ .[1]

ترجمة : تکيه کوونکي به وي دوی پر بالښتونو شين رنګو باندې او په فرشونو عمده وو ښائسته وو باندې .

عَالِيَهُمْ ثِيَابُ سُندُسٍ خُضْرٌ وَإِسْتَبْرَقٌ وَحُلُّوا أَسَاوِرَ مِن فِضَّةٍ وَسَقَاهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُورًا .[2]

ترجمة: د پاسه پر دوی باندې به کالي (جامې) د نريو وريښمو وي چې شنه به وي او د پريړو (غټو) وريښمو نه او وابه غوسته شي (دوی ته) باهو ګان له سپينو زرو او ور وبه ځښي دغو (جنتيانو ته) رب د دوی شراب طهور (ځښاک ښه پاکيزه) .

وَجَزَاهُم بِمَا صَبَرُوا جَنَّةً وَحَرِيرًا [3]

ترجمة : او جزا به ورکړي دوی ته (ﷲ ) په سبب د صبر د دوی (ټول نعماء د) جنت او (جامې) وريښمينې.

---

[1] سورة رحمن آية ٧٦
[2] سورة الدهر (الانسان) آية ٢١
[3] سورة الدهر (الانسان) آية ١٢

يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ . [1]

ترجمة : ګاڼه (زېورات) به واچول شي (جنتيانو ته) په دغه (جنت) کې له با هو ګانو (وښيو) له سرو زرو او له ملغلرو څنې او جامې د دغو (جنتيانو) به په دغه (جنت) کې ورېښمينې وي.

جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ . [2]

ترجمة : جنتونه د هستوګنې دي ننوزي به (مؤمنان) په هغو کې ګاڼه دار کولی به شي په دغه (جنت) کې له باهو ګانو (وښيو) څخه له سرو زرو (خالصو) او له ملغلرو (صافو) او جامې د دوی په دغه (جنت) کې د ورېښمو (مخصوصو) به وي.

حضرت براء بن عازب فرمايي : **أتى الرسول - صلى الله عليه وسلم - بثوب من حرير، فجعلوا يعجبون من حسنه ولينه، فقال رسول الله - صلى الله عليه وسلم -: لمناديل سعد بن معاذ في الجنة أفضل من هذا .** [3]

ترجمة : رسول الله ﷺ ته د ورېښمو يوه جامه راوړل شوه صحابه ورته حيران وو د هغې ښائست او د هغې نرم والي ته رسول الله ﷺ وفرمايل : بېشکه د سعد بن معاذ دستمالونه په جنت کې ددېنه غوره دي .

د جنتيانو په جامو کې به يو تاج هم وي چې په سر به يې ايږدي په يو حديث کې چې رسول الله ﷺ د شهيد په اړه خبرې کولې د شهيد لپاره يې خاصيتونه بيانول يو يې دا هم وويل : **ويوضع على**

[1] **سورة الحج آية ٢٣**
[2] **سورة فاطر آية ٣٣**
[3] **صحيح البخاري**

رأسه تاج الوقار، الياقوتة منه خير من الدنيا وما فيها .[1]

ترجمة : او په سر به ورته يو د عزت تاج كېښودل شي چې په هغه كې به يو ياقوت د ټولې دنيا او هغه څه نه غوره وي چې په دنيا كې دي .

او په جنت كې د جنتيانو جامې به هم داسې جامې نه وي چې د وخت تېرېدلو سره زړې شي او كه جنتي نور جامې استعمالول غواړي نو هغه به صرف د شوق لپاره كني د جنتيانو جامې نه زړيږي رسول الله ﷺ فرمايي : **من يدخل الجنة ينعم لا يبأس، لا تبلى ثيابه، ولا يفنى شبابه** .[2]

ترجمة : څوك چې جنت ته ننوزي هغه نه خفه كيږي ، نه يې جامې زړيږي او نه يې ځواني ختميږي .

## د جنت د جامو رنګ

په اكثر ځايونو كې چې د جنتيانو د جامو د رنګ ذكر راغلى دى نو هلته ورسره دا هم ياد كړل شوي دي چې د جنتيانو جامې به په شنه رنګ كې وي لكه مخكې تېر شو الله فرمايل : **عَالِيَهُمْ ثِيَابُ سُندُسٍ خُضْرٌ وَإِسْتَبْرَقٌ وَحُلُّوا أَسَاوِرَ مِن فِضَّةٍ وَسَقَاهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُورًا** .[3]

ترجمة : د پاسه پر دوى باندې به كالي (جامې) د نريو وريښمو وي چې شنه به وي او د پرېړو (غټو) وريښمو نه او وابه غوسته شي (دوى ته) باهو ګان له سپينو زرو او ور وبه څښي دغو (جنتيانو ته) رب د دوى شراب طهور (څښاك ښه پاكيزه) .

---

1 **سنن الترمذي او ابن ماجة**
2 **صحيح مسلم**
3 **سورة الدهر (الانسان) آية ٢١**

وَيَلْبَسُونَ ثِيَابًا خُضْرًا مِّن سُندُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ مُّتَّكِئِينَ فِيهَا عَلَى الْأَرَائِكِ نِعْمَ الثَّوَابُ وَحَسُنَتْ مُرْتَفَقًا .[1]

ترجمة : او آغوندي به دغه (جنتيان) جامې زرغونې له نريو وريښمو او له پريړو (غټو) وريښمو تکيه کوونکي به وي په دغو جنتونو کې پر تختونو باندې ښه بدل دى (دا جنتونه او نعمتونه) او ښه ځای د آرام.

## ولې شين رنګ؟

پدې اړه علماوو ډيرې څيړنې کړي دي چې د جنتيانو لپاره په ټولو رنګونو کې د جامې لپاره په متعددو ځايونو کې شين رنګ ولې ياد کړل شوى دى پدې اړه چې زما يوه څيړنه خوښه شويده هغه لتاسې سره شريکوم هغه څيړنه وايي چې د رنګونو لپاره صرف ظاهري بڼه چې له بل نه مختلف ښکاره کيږي نه ده بلکه دا رنګونه هر يو بېل او ځانګړی تاثير هم لري يو وخت داسې وو چې په پخوانيو چينايانو کې چې علم الطب ډيره مخه کړې وه هغوى به ځينې بيماران په خاص رنګ کوټه کې بستر کول او د هماغه رنګ جامې به يې ورته کولې او پدې کې د دوى راز دا وو چې دوى ويل رنګونه په بيماريو باندې تاثير کوي په اوس وخت کې چې علم مخکې لاړو نو د هغه مخکنيو چينايانو په نظريه باندې تجربې وشوې او د تجربې په دوران کې به يو بيمار په يوه داسې کوټه کې کينول شو چې هلته به هرشى په يو رنګ وو او د بيمار جامې به يې هم له هغه رنګه ورکړې وروسته به يې معاينات ورته وکول او نتيجه به يې ترې را واخيسته د ټولو نتيجو په آخر کې دا خبره ښکاره شوه شين رنګ داسې يو رنګ دى چې ډيرې بکترياوې له مينځه وړې او د

---

[1] سورة الكهف آية ٣١

متعددو بيماريو په ښه کېدلو کې مرسته کولی شي او دا له يو کس نه د ستړيا تاثير کمولی شي نو هغه څوک چې دې رنګ ته ګوري پدې سره د هغه په زړه کې سکون او يو ډول خوشحالي محسوس کيږي چې دا کمال په بل رنګ کې نشته اوددې تجربو نه خلک پدې هم پوه شول چې فرعونيانو به کله خپل مړي د ډېر وخت لپاره ساتل غوښتل نو هغه به يې په شنه رنګ کې ساتل ځکه ددې رنګ سره مکروب ډېر وخت نشي تېرولی نو ددې څېړنو په نتيجه کې اوس علماء دې نتيجې ته رسېدلي دي چې يوازينی رنګ چې استعمال کونکي ته خوشحالي او د ښه راحت احساس ورکوي هغه شين رنګ دی .

# په جنت کې اول جامه

لکه مخکې تېر شول چې د محشر لپاره به خلک له خپلو قبرونو څخه لوڅ داسې را پورته شي لکه څنګه چې له مورانو څخه را پيدا شوي وو چې په ځان به يې هېڅ هم نه وي او نه به سنت شوي وي بلکه په اصلي او اولي حالت به را پورته کيږي کله چې د جنتيانو او دوزخيانو په مينځ کې فيصله وشي نو جنتيان چې جنت ته لاړ شي بېرته به د زينت او ښائست جامې واغوندي او تول به بېرته پټ شي پدې جنتيانو کې به تر ټولو وړاندې جامه حضرت ابراهيم ته ور آغوستلی کيږي حضرت ابن عباس فرمايي رسول الله ﷺ مونږ ته خطبه ويله ويې فرمايل : إِنَّكُمْ مَحْشُورُونَ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلا: (كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ)، وَإِنَّ أَوَّلَ الخَلائِقِ يُكْسَى يَوْمَ القِيَامَةِ إِبْرَاهِيمُ، وَإِنَّهُ سَيُجَاءُ بِرِجَالٍ مِنْ أُمَّتِي فَيُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ، فَأَقُولُ: يَا رَبِّ أَصْحَابِي، فَيَقُولُ: إِنَّكَ لا تَدْرِي مَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ، فَأَقُولُ كَمَا قالَ العَبْدُ الصَّالِحُ: (وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ) إِلَى قَوْلِهِ: (الْحَكِيمُ) قالَ: فَيُقال: إِنَّهُمْ لَمْ يَزَالُوا مُرْتَدِّينَ عَلَى أعْقَابِهِمْ[1] .

---

[1] أخرجه البخاري

ترجمة : تاسي به حشر ته را پاڅول شئ لوڅې پښې نا سنته (الله فرمايي لکه څنګه مو چې اول پيدا کړي وو هماغسې به يې بيا را وګرځوو) او په ټولو مخلوقاتو کې چې اول جامه ور آغوستله کيږي هغه به حضرت ابراهيم وي بېشکه زما د امت نه به څه کسان راوستل شي هغه به ذات الشمال (هغه فرښتې چې د بد عمل لرونکي کسان کش کوي ) بوزي زه به وايم اې زما ربه زما ملګري؟ الله به راته ووايي چې ته نه يې خبر چې دوی ستا نه وروسته څه کړي وو؟ زه به ورته ووايم لکه عبد الصالح (حضرت عيسى ) چې ويل (او زه وم په هغوی باندې ګواه ترڅو چې زه پکې وم) په نوموړي آيت کې تر (الحكيم) پورې بيا به وويل شي چې هغه ستا نه وروسته بېرته مرتد شوي وو .

## د جنت خادمان

الله به په جنت کې جنتيانو ته خادمان ورکړي هغه به د دوی خدمت کوي داسې خادمان به وي چې ډېر ښائسته به وي ، په سترګو به ښکلي ښکاره کيږي او نوي هلکان به وي الله د هغو خادمانو ذکر په قرآن کريم کې کړی دی فرمايي : **يَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُونَ بِأَكْوَابٍ وَأَبَارِيقَ وَكَأْسٍ مِّن مَّعِينٍ** .[1]

ترجمة : ګرځي به په دوی باندې (د پاره د خدمت) هلکان تل پاتې کېدونکي (په هلکوالي سره) په ګلاسونو او په کوزو سره او په کاسو لوښيو سره له صافو پاکو شرابو بهېدونکيو څخه.

په بل ځای کې فرمايي : **وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُونَ إِذَا**

[1] **سورة الواقعة آية ١٧-١٨**

رَأَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ لُؤْلُؤًا مَّنثُورًا . [1]

ترجمة : او ګرځي پر دغو جنتيانو باندې هلکان تل پاتې شوي (پخپل حال د ځواني باندې) کله چې ووينې ته دوی ګڼې به هغوی (په صفايي کې) لکه ملغلرې خورې شوې.

امام ابن کثير فرمايي يعني چې کله ته دوی وويني چې د خپلو سيدانو په خدمت کې خپاره وي او مخونه يې له ډېره ښائست نه رڼا کوي او ځليږي نو تاته به لکه خپرې ملغلرې داسې ښکاره شي .

خو دا خادمان به له کومه کيږي پدې اړه د علماوو مختلف اقوال دي :

ځينې علماء فرمايي دا هغه د مسلمانانو ماشومان دي چې په ماشومتوب کې په حق رسېدلې وي خو علماء فرمايي دا قول ډېر ضعيف دی ځکه ځينې داسې مؤمنان هم وي چې د هغوی بالکل اولاد نه وي نو که د بل مؤمن اولاد دده لپاره خادم ګرځول کيږي نو دا خو ددې ماشوم د پلار د پاره چې هغه به هم مؤمن وي او په جنت کې به وي څه ښه خبره نه ده ځينې فرمايي چې دا د کفارو اولاد دی چې تر بلوغ وړاندې په حق رسېدلی وي دا قول له اول نه ښه دی خو صحيح مذهب چې د محققنو علماء رايه ده هغه دادی چې دا به الله په جنت کې د مؤمنانو د خدمت لپاره پيدا کړي لکه څنګه يې چې ورته حورې او داسې دا ټول نعمتونه پيدا کړي دي .

## د جنت مجلسونه

جنتيان به په جنت کې سره ټوليږي او يو له بل

[1] سورة الانسان

سره په کېنې خبرې او مجلسونه به کوي او هغه ځه به هم يادوي چې د دوی په مينځ کې په دنيا کې شوي وو او يو د بل ملاقات ته به ورځي يو د بل سره به مينه کوي او د يو بل لپاره به په زړونو کې هېڅ ډول کرکه او خيرى نه لري ټول به لکه خوارړه ورونه داسې سره چليږي ﷲ فرمايي :وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ إِخْوَانًا عَلَى سُرُرٍ مُّتَقَابِلِينَ . [1]

ترجمة: او وبه باسو (لرې به کړو) هر هغه چې په زړونو د دغو (جنتيانو) کې دي له کينې څخه حال دا چې (لکه) ورونه به وي سره ناست به وي پر تختونو مخامخ يو بل ته.

## جنتيان به څنګه خبرې به کوي؟

ﷲ فرمايي وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ يَتَسَاءلُونَ قَالُوا إِنا كُنا قَبْلُ فِي أَهْلِنَا مُشْفِقِينَ فَمَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا وَوَقَانَا عَذَابَ السَّمُومِ إِنا كُنا مِن قَبْلُ نَدْعُوهُ إِنَّهُ هُوَ الْبَرُّ الرَّحِيم . [2]

ترجمة: او مخ به کړي ځينې د دوی ځينو نورو نه چې پوښتنې به سره کوي (له دنيوي مشقتونو څخه تشکراً) وبه وايي دوی چې بېشکه مونږ ړومبني له دې نه وو په اهل خپل کې وېرېدونکي (له عذابه) نو احسان وکړ ﷲ پر مونږ باندې او وي ساتلو مونږ له عذاب د تودوخي ګرمي (د دوزخ) بېشکه مونږ وو پخوا له دې څخه (په دنيا کې) چې عبادت به مو کاوه د دغه (ﷲ) بېشکه چې دغه (ﷲ) هم دی دی ډېر ښه احسان کوونکی ډېر رحم لرونکی.

جنتيان به يو له بل سره په خبرو کې شکر وباسي چې له هغه کسانو څخه نه دي چې هغوی

---

1 سورة الحجر آية ٤٧
2 سورة الطور آية ٢٥-٢٧

جهنم ته تللي دي او دا به په ځانونو باندې د الله فضل ګڼي فرمايي : **فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ يَتَسَاءلُونَ قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ إِنِّي كَانَ لِي قَرِينٌ يَقُولُ أَئِنَّكَ لَمِنْ الْمُصَدِّقِينَ أَئِذَا مِتْنَا وَكُنا تُرَابًا وَعِظَامًا أَئِنا لَمَدِينُونَ قَالَ هَلْ أَنتُم مُّطَّلِعُونَ فَاطَّلَعَ فَرَآهُ فِي سَوَاء الْجَحِيمِ قَالَ تَاللَّهِ إِنْ كِدتَّ لَتُرْدِينِ وَلَوْلا نِعْمَةُ رَبِّي لَكُنتُ مِنَ الْمُحْضَرِينَ أَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِينَ إِلاَّ مَوْتَتَنَا الأُولَى وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ إِنَّ هَذَا لَهُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ لِمِثْلِ هَذَا فَلْيَعْمَلْ الْعَامِلُونَ.** [1]

ترجمة : پس مخ به وګرځوي ځينې د جنتيانو پر ځينو نورو جنتيانو چې پوښتنه به سره کوي يو له بله (له احواله د دنيا) نو وبه وايي يو ويونکی له دوی نه چې بېشکه زه چې وم وو ما لره يو ملګری (منکر له بعثه) چې ويل يې (ماته) آيا بېشکه ته چې ئې له باور کوونکيو ئې (په بعث بعد الموت) آيا هرکله چې مړه شو مونږ او شو مونږ خاورې او هډوکي آيا بېشکه مونږ ته به خامخا جزاء راکړه شي بيا وايي آيا يئ تاسې کتونکي (په دوزخ کې چې د هغه منکر حال در ښکاره شي) پس وبه ګوري (دغه قائل) پس وبه ويني هغه (منکر ملګرى) په مينځ د دوزخ کې وبه وايي (قائل منکر ته د ملامتيا د پاره) قسم دی په الله چې نېږدې وې ته چې په کنده د دوزخ کې مې وغورځوې او که نه وی انعام د رب زما خامخا وم به زه له حاضر کړيو شويو (دوزخ ته سره له تا) آيا پس نه يو مونږ (جنتيان) مړه کېدونکي (بلکه نه يو) مګر همغه مرګ زمونږ ړومبنی (په دنيا کې) او نه يو مونږ په عذاب کړل شوي بېشکه چې دغه (ابدي خوندور حيات) خامخا هم دغه په مراد رسېدل برى ډېر لوی دی خاص د پاره د مثل د دې (نعمتونو) پس ښايي چې عمل وکړي عمل کوونکی (نه د پاره د جاه او مال د دنيا چې فاني دي) .

---

[1] **سورة الصافات آية ٥٠-٦١**

# د جنتيانو ارمانونه

جنتيان به په جنت کې هم کله عجيب ارمانونه کوي او چې څنګه ارمان کوي الله به يې ورته پوره کوي لکه په يو حديث کې چې راغلي دي چې يو جنتي به ددې ارمان وکوي چې دده زمکه وای او ده پکې کرونده کړې وای حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ پداسې حالت کې ويل چې يو کوچی ورسره ناست وو : إن رجلاً من أهل الجنة استأذن ربه في الزرع، فقال له: ألست فيما شئت؟. قال: بلى، ولكن أحب الزرع، فبذر، فبادر الطرف نباته. واستواؤه، واستحصاده، فكان أمثال الجبال، فيقول الله تعالى: دونك يا ابن آدم، فإنه لا يشبعك شيء فقال الأعرابي: والله لا تجده إلا قرشياً أو أنصارياً، فإنهم أصحاب الزرع، وأما نحن فلسنا بأصحاب زرع، فضحك رسول الله - صلى الله عليه وسلم.[1]

ترجمة : يو کس به د جنتيانو څخه اجازه وغواړي له رب خپل نه په کرهڼه کې الله به ورته ووايي ولې لتا سره چې څه شی دي هغه ستا خوښ نه دي بنده به ورته وايي هو ربه لکن زما خوښيږي کرهڼه تخم به وشيندي لږ ساعت پس به را شنه شي ، لوی به شي ، او د هغې لو به وشي لکه غرونه داسې حاصل به ورڅخه را ووزي الله به ورته وايي د آدم زويه پرې يې ږده هيڅ شی به تا موړ نه کړي پدې وخت کې کوچي وويل : و الله دا کس به يا قريشی وي او يا به انصاري وي دا کرهنې د همدوی خوښې وي او مونږ د کرلو واله نه يو رسول الله ﷺ ورته وخندل .

جنتي که په جنت کې ارمان وکوي چې دده ماشوم وی نو هلته به هم الله ورته ماشوم ورکړي حضرت ابي سعيد څخه روايت دی هغه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : المؤمن إذا اشتهى الولد في الجنة، كان حمله ووضعه

---

[1] صحيح البخاري

وسنه في ساعة واحدة كما يشتهي .[1]

ترجمة : کله چې د مؤمن په جنت کې ماشوم ته زړه وشي نو د هغه حمل د هغه پیدا کیدل او لوئېدل به په یوه ساعت کې وي څنګه چې دده ورته زړه کیږي .

یعني په جنت کې که جنتي د څه ارمان کوي هغه به ورکول کیږي او پدې کې به د جنتي ددې ضرورت نه کیږي چې دی ورته انتظار وکوي هرشی به ورته بغیر د تکلیف نه کیږي او په هېڅ شي کې به دده ضرورت نه کیږي چې دی ورته انتظار وکوي .

## د جنت حورې

الله به په جنت کې مؤمنانو ته بیبیانې ورکړي او هغه به داسې ښځې نه وي لکه په دنیا کې چې وې هغه به په ډېرو داسې ښکلا ګانو باندې ښکلې وي چې په دنیا کې یې څوک تصور هم نشي کولی او په عربي ژبه کې حور د حوراء جمع ده هغه ښځې ته ویل کیږي چې د سترګو سپین یې ډېر سپین او تور یې ډېر تور وي صفتونه به یې وروسته راشي الله فرمایي چې جنتیانو ته به په جنت کې حورې ورکول کیږي فرمایي : كَذَٰلِكَ وَزَوَّجْنَاهُم بِحُورٍ عِينٍ .[2]

ترجمة : همدارنګه مونږ به جنتیانو ته ورکړو غټ سترګې ښائسته حورې.

په بل ځای کې فرمایي : إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا حدائق وأعناباً وَكَوَاعِبَ أَتْرَابًا .[3]

ترجمة : بېشکه خاص متقیانو ته (په آخرت کې)

---

1 رواه الامام احمد
2 سورة الدخان آية ٥٤
3 سورة النباء آية ٣١-٣٣

ځای د خلاصي بري کاميابي دی باغونه (د ميوې) او د انګورو (ونې) دي او پېغلې انارتيونې همزولې دي.

په بل ځای کې الله فرمايي : **إنا أَنشَأْنَاهُنَّ إِنشَاء فَجَعَلْنَاهُنَّ أَبْكَارًا عُرُبًا أَتْرَابًا .** [1]

ترجمة : بېشکه مونږ نوي پيدا کړي دي دغه حورې په يوه ښه پيدا کولو سره نو ګرځولي مو دي دوی پېغلې عاشقانې (پر جنتيانو خاوندانو خپلو) همزولې (په خپل مابين کې) .

او دا به داسې حورې وي چې د جنتي نه به وړاندې چا هغې ته لاس نه وي لګولی الله د هغوی په اړه فرمايي : **لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلا جَانٌّ فَبِأَيِّ آلاء رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ كَأَنَّهُنَّ الْيَاقُوتُ وَالْمَرْجَانُ.** [2]

ترجمة : (په جنتونو کې به جنتيانو ته داسې حورې وي ) چې نه به وي مسه کړي دوی لره نه انسان او نه پيري پخوا له دغو (جنتيانو خاوندانو خپلو) پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب ستاسې دروغ وايئ (او منکريږئ تربې اې انسانانو او پېريانو بلکه نشئ کېدی) په صفايي او ښايست کې به داسې وي لکه ياقوت او مرجان غمې .

په بل ځای کې الله فرمايي : **وَحُورٌ عِينٌ كَأَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ .** [3]

ترجمة : او (ګرځي به په دغو جنتيانو باندې) حورې پيمخې غټې سترګې په شان د ملغلرو ساتليو شويو په پوښونو کې.

---

1 **سورة الواقعة آية ٣٥-٣٧**
2 **سورة الرحمن آية ٥٦-٥٨**
3 **سورة الواقعة آية ٢٢-٢٣**

فِيهِنَّ خَيْرَاتٌ حِسَانٌ فَبِأَيِّ آلاء رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ حُورٌ مَّقْصُورَاتٌ فِي الْخِيَامِ . [1]

ترجمة : وي به په دغو (ټولو جنتونو) كې حورې پيمخې نيكې ښائسته پس په كوم يوه نعمت د نعمتونو د رب د تاسې دروغ وايئ (او منكرېږئ ترې اې انسانانو او پېريانو بلكه نشئ كېدى) حورې به وي پټې كړل شوې په خېمو كې.

وَلَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ . [2]

ترجمة : او د دوى لپاره به په جنت كې مېرمنې وي پاكې او دوى به پدې جنت كې همېشه وي .

په يو حديث كې رسول الله ﷺ فرمايي : **ولو أن امرأة من أهل الجنة اطلعت إلى أهل الأرض لأضاءت ما بينهما، ولملأته ريحاً، ولنصيفها على رأسها خير من الدنيا وما فيها .** [3]

ترجمة : او كه چېرته كومه ښځه د اهل الجنة نه زمكې ته را وګوري نو د زمكې او اسمان مينځ به ټول له رڼا څخه ډک شي او له ښه بوى نه به ډک شي او د هغې په سر باندې چې كوم تاج دى هغه د ټولې دنيا او له هغه څه نه چې په دنيا كې دي غوره دى .

او دا حورانې به د شهيد لپاره ۷۲ وي پدې اړه روايات او احاديث مخكې د شهيد په اړه ددې سلسلې په ځانګړې كتاب كې تير شوي دي .

او د جنت دا حورې به د خپل سيد او خپل خاوند لپاره بدلې هم وايي پداسې آواز چې داسې خوږ اواز به تر اوسه پورې چا آورېدلى نه وي حضرت ابن عمر فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إن أزواج أهل**

---

1 سورة رحمن آية ۷۰-۷۲
2 سورة البقرة آية ۲۵
3 صحيح البخاري

الجنة ليغنين أزواجهن بأحسن أصوات ما سمعها أحد قط. إن مما يغنين: نحن الخيرات الحسان، أزواج قوم كرام، ينظرن بقرة أعيان. وإن مما يغنين به: نحن الخالدات فلا يمتنه، نحن الآمنات فلا يخفنه، نحن المقيمات فلا يظعنّه .[1]

ترجمة : بېشکه د اهل الجنة بيبياني به بدلې بولې د خپلو خاوندانو لپاره په بهترينو اوازونو سره چې تر اوسه به چا نه وي آورېدلي بعض هغه بدلې چې دوى به يې وايي دادي **نحن الخيرات ...** الخ

د جنت حوري په خپل سيد باندې غيرت هم کوي او په دنيا کې چې يو نېک انسان وي د هغه لپاره چې کومه حوره تعين شوې وي هغه يې انتظار هم وباسي په يو حديث کې حضرت معاذ فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **لا تؤذي امرأة زوجها في الدنيا، إلا قالت زوجته من الحور العين: لا تؤذيه قاتلك الله، فإنما هو دخيل عندك، يوشك أن يفارقك إلينا** .[2]

ترجمة : په دنيا کې چې کومه ښځه خپل خاوند ته ضرر رسوي دده چې په جنت کې کومه حوره وي هغه ورته وايي : ضرر مه ورته رسوه تا د الله مړه کړي دا خو لتا سره مېلمه دى زر ده چې لتا نه به دى مونږ ته را جدا شي .

## د جنت بيبياني

هغه کس چې نېک وي او الله ورته هدايت کړى وي بيا يې الله په خپل فضل سره جنت ته بوزي نو چې په دنيا کې د هغه کومه مېرمن وي هغه هم نيکه وي هغه به په جنت کې هم له خپل خاوند سره وي الله فرمايي : **جَناتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا وَمَنْ صَلَحَ مِنْ آبَائِهِمْ وَأَزْوَاجِهِمْ**

---

[1] **معجم الطبراني الاوسط**

[2] **سنن الترمذي**

وَذُرِّيَاتِهِم . [1]

ترجمة : جنتونه دي د تل اوسېدلو چې ننوزي به دوى په هغو کې او (ننوزي به پکې بل) اولادې د دوى (اګر که عمل ئې د هغو په درجه نه وي)

په بل ځاى کې الله فرمايي : هُمْ وَأَزْوَاجُهُمْ فِي ظِلالٍ عَلَى الْأَرَائِكِ مُتَّكِؤُونَ . [2]

ترجمة : دغه (جنتيان) او ښځې د دوى به په سيوريو کې (ناست وي) پر تختونو باندې تکيه وهونکي به وي .

ادْخُلُوا الْجَنَّةَ أَنتُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ تُحْبَرُونَ . [3]

ترجمة : ننوزئ (اې زما بندګانو) جنت ته تاسې او ښځې ستاسې چې خوشاله به کړل شئ .

حضرت ميمون بن مهران فرمايي کله چې حضرت ابوالدرداء وفات شو حضرت معاوية د هغه د مېرمن حضرت ام الدرداء ته د واده دعوت ورکړو لکن هغې مبارکې ترېنه انکار وکولو او د انکار وجه يې ورته دا وويله : سمعت أن أبا الدرداء يقول: قال رسول الله - صلى الله عليه وسلم المرأة في آخر أزواجها، أو قال: لآخر أزواجها .

ترجمة : ما د ابو الدرداء نه آورېدل چې هغه به ويل رسول اللهﷺ فرمايل ښځه به په جنت کې د آخر خاوند سره وي .

حضرت عکرمة فرمايي : إن أسماء بنت أبي بكر كانت تحت

1 سورة الرعد آية ٢٣
2 سورة يس
3 سورة الزخرف

**الزبير بن العوام، وكان شديداً عليها، فأتت أباها، فشكت ذلك إليه، فقال: يا بنية اصبري، فإن المرأة إذا كان لها زوج صالح، ثم مات عنها، فلم تزوج بعده جمع بينهما في الجنة .** [1]

ترجمة : بېشكه اسماء د حضرت ابي بكر لور د حضرت زبير بن العوام په نكاح كې وه هغه لدې سره سخت وو دا يې خپل پلار (حضرت ابو بكر صديق ) ته راغله شكايت يې ورته وكولو حضرت ابو بكر صديق ورته وويل : لورې صبر كوه كله چې د ښځې نېک خاوند وي او هغه ورڅخه مړ شي او دا د هغه نه وروسته بل واده ونه كوي الله به دوى دواړه په جنت كې سره يو ځاى كړي .

## د جنتيانو ماشومان

د جنتيانو ماشومان هغه چې تر بلوغ وړاندې په حق ورسيږي ان شاء الله هغوى به هم په جنت كې وي الله به يې په خپل رحم او فضل سره جنت ته ورسوي الله فرمايي : **وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَا أَلَتْنَاهُم مِّنْ عَمَلِهِم مِّن شَيْءٍ كُلُّ امْرِئٍ بِمَا كَسَبَ رَهِينٌ .** [2]

ترجمة : او هغه كسان چې ايمان ئې راوړى دى او متابعت يې كړى وي د دوى اولادونو د دوى په ايمان سره نو پيوست به كړو مونږ په دوى پورې اولاد د دوى او كم به نه كړو مونږ دغو (پلرونو) لره له (جزاء د) عملونو د دوى هېڅ شى هر سړى به په هغه عمل چې كړى ئې وي گرو آخته وي (كه نېک وي يا بد) .

په پورتني آيت كې الله په مؤمنانو باندې خپل يو بل فضل او احسان بيانوي هغه دا چې ددوى اولادونه به دوى ته ور ورسوي ترڅو د دوى سترگې

---

[1] **رواه الطبراني**
[2] **سورة الطور آية ٢١**

پرې يخې شي سره ددې چې د هغوی عملونه به دومره نه وي چې دې ځای ته پرې ورسيږي خو د پلار د سترګو د يخولو او د هغه د خوشحالي لپاره به ورته دا مرتبه ورکړي او دا به يې په دې جنتيانو باندې احسان وي الله د خپل احسان له مخې داسې نه کوي چې د لوړې مرتبې لرونکی پلار ورته را ښکته کړي بلکه دا ښکته مرتبې واله به ور پورته کړي د حضرت ابي سهل نه روايت دی هغه فرمايي ما له حضرت ابن عمر څخه واوريدل چې ددې آيت **كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ إِلاَّ أَصْحَابَ الْيَمِينِ** ( ترجمة : هر نفس به په بدل د هغه عمل کې چې ده کړی وي ګرو وي بغير د ملګرو او خاوندانو د ښي لاس نه ) يعنې د مسلمانانو ماشومان .[1]

همدارنګه حضرت علي به هم همداسې ويل او هغه به ويل چې هر نفس به د خپلو عملونو له وجې (رهينة يعني ګرو) وي بغير د مسلمانانو د ماشومانو چې هغوی تر اوسه پورې څه عملونه کړي نه دي چې په نتيجه کې يې بيا (ګرو) شي .

او پدې باندې دلا ئل موجود دي چې د مسلمانانو نا بالغ ماشومان به جنت ته ځي د مثال په ډول حضرت ابن سيرين فرمايي ماته حضرت ام حبيبة قصه کوله چې دا د حضرت عائشې په کور کې ناسته وه رسول الله ﷺ راغلو او دوی ته ور ننوتلو ويې ويل : **مَا مِنْ مُسْلِمَيْنِ يَمُوتُ لَهُمَا ثَلاثَةٌ مِنَ الْوَلَدِ ، لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ ، إِلا جِيءَ بِهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ، حَتَّى يُوقَفُوا عَلَى بَابِ الْجَنَّةِ ، فَيَقُولُونَ : حَتَّى يَدْخُلَ آبَاؤُنَا قَالَ ابْنُ سِيرِينَ : وَلا أَدْرِي فِي الثَّالِثَةِ ، أَوْ فِي الثَّانِيَةِ ، ادْخُلُوا الْجَنَّةَ أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ ، فَقَالَتْ عَائِشَةُ لِلْمَرْأَةِ : سَمِعْتِ ؟ قَالَتْ : نَعَمْ .**[2]

ترجمة : د کوم مسلمان چې درې ماشومان په حق

---

1 **مصنف ابن ابي شيبة**
2 **الاحاد و المثاني**

ورسيږي كوم چې لا بلوغ ته نه وي رسېدلي دوی به د قيامت په ورځ راوستل شي ترڅو د جنت په دروازه باندې ودريږي او وايي به : چې زمونږ مور او پلارهم ننوزي ابن سيرين فرمايي اوس مې ياد نه دي چې په دريم او كه په دوهم ځل كې به ورته وويل شي تاسې او ستاسې پلرونه جنت ته ننوزئ حضرت عائشې هغه بيبي ته ويل : وا د وريدل؟ هغې ورته ويل : هو

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : مَا مِنْ مُسْلِمَيْنِ يَمُوتُ لَهُمَا ثَلاَثَةُ أَوْلاَدٍ لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ إِلاَّ أَدْخَلَهُمُ اللَّهُ وَإِيَّاهُمْ بِفَضْلِ رَحْمَتِهِ الْجَنَّةَ . وَقَالَ يُقَالُ لَهُمُ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ. قَالَ فَيَقُولُونَ حَتَّى يَجِىءَ أَبَوَانَا - قَالَ ثَلاَثَ مَرَّاتٍ - فَيَقُولُونَ مِثْلَ ذَلِكَ فَيُقَالُ لَهُمُ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ أَنْتُمْ وَأَبَوَاكُمْ[1] .

ترجمة : د كومو دوو مسلمانو (مور پلار) چې درى ماشومان تر بلوغ وړاندې په حق ورسيږي الله به هغوى جنت ته په خپل فضل او رحمت سره ننباسي او ويې فرمايل چې هغوى ته به ويل كيږي جنت ته ننوزئ دوى به ووايي : چې زمونږ مور پلار راشي درى ځلې يې داسې وويل بيابه هم دوى همداسې وايي بيا به ورته وويل شي ځئ تاسې او ستاسې پلرونه جنت ته ننوزئ .

حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : مَا مِنْ مُسْلِمَيْنِ يَمُوتُ لَهُمَا ثَلاَثَةٌ مِنَ الْوَلَدِ لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ إِلاَّ أَدْخَلَهُمُ اللَّهُ وَأَبَوَيْهِمُ الْجَنَّةَ بِفَضْلِ رَحْمَتِهِ - قَالَ - وَيَكُونُونَ عَلَى بَابٍ مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ فَيُقَالُ لَهُمُ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ فَيَقُولُونَ حَتَّى يَجِىءَ أَبَوَانَا فَيُقَالُ لَهُمُ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ أَنْتُمْ وَأَبَوَاكُمْ بِفَضْلِ رَحْمَةِ اللَّهِ .[2]

ترجمة : د دوو مسلمانانو (مورپلار) چې درى ماشومان پداسې حالت كې مړه شي چې بلوغ ته نه

---

[1] مسند امام احمد بن حنبل

[2] السنن الكبرى للبيهقي

وي رسيدلي الله به هغه ماشومان او د هغوی مور پلار جنت ته په خپل فضل او رحم سره ننباسي او دا ماشومان به د جنت دروازې ته ورسيږي ورته به وويل شي چې ننوزئ جنت ته دوی به وايي ترڅو زمونږ مور او پلار راشي بيا به ورته وويل شي تاسې او ستاسې مور پلار جنت ته ننوزئ د الله په فضل اور حمت سره .

حضرت معاذ بن جبل فرمايي ما له رسول الله ﷺ ښخه واوريدل چې فرمايل يې مَا مِنْ مُسْلِمَيْنِ يَمُوتُ لَهُمَا ثَلاثَةٌ مِنَ الْوَلَدِ، إِلا أَدْخَلَ اللَّهُ وَالِدَيْهِمَا الْجَنَّةَ بِفَضْلِ رَحْمَتِهِ"، قَالُوا: وَاثْنَيْنِ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ:"وَاثْنَيْنِ"، قَالُوا: وَوَاحِدٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ:"وَوَاحِدٌ"، ثُمَّ حَدَّثَ أَنَّ:"السِّقْطَ لَيَجُرُّ أُمَّهُ بِسَرَرِهِ إِلَى الْجَنَّةِ . [1]

ترجمة : هغه دوه مسلمانان (مور پلار) چې درى ماشومان يې مړه شي الله به يې مور پلار جنت ته په فضل او رحمت سره ننباسي صحابه وو ورته وويل : او كه دوه وي يا رسول الله ﷺ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل او كه دوه هم وي صحابه وو ورته وويل : او كه يو وي يا رسول الله ﷺ؟ رسول الله ﷺ وويل او كه يو هم وي بيا يې وويل : هغه ضائع شوى ماشوم به خپله مور په نو (د نو هغه برخه چې په هغې سره ماشوم د مور سره تړلى وي) سره جنت ته كش كوي .

د حضرت ابي حسان نه روايت دى هغه فرمايي : قُلْتُ لأَبِى هُرَيْرَةَ إِنَّهُ قَدْ مَاتَ لِىَ ابْنَانِ فَمَا أَنْتَ مُحَدِّثِى عَنْ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ- بِحَدِيثٍ تُطَيِّبُ بِهِ أَنْفُسَنَا عَنْ مَوْتَانَا قَالَ قَالَ نَعَمْ « صِغَارُهُمْ دَعَامِيصُ الْجَنَّةِ يَتَلَقَّى أَحَدُهُمْ أَبَاهُ - أَوْ قَالَ أَبَوَيْهِ - فَيَأْخُذُ بِثَوْبِهِ - أَوْ قَالَ بِيَدِهِ - كَمَا آخُذُ أَنَا بِصَنِفَةِ ثَوْبِكَ هَذَا فَلاَ يَتَنَاهَى - أَوْ قَالَ فَلاَ يَنْتَهِى - حَتَّى يُدْخِلَهُ اللَّهُ وَأَبَاهُ الْجَنَّةَ . [2]

---

1 المعجم الكبير للطبراني
2 صحيح مسلم

ترجمة : ما حضرت ابي هريره ته وويل بېشکه زما دوه زامن مړه شوي دي ته د رسول الله ﷺ نه ماته څه داسې حديث نه وايي چې زړه مې پرې د مړيو نه خوشحال شي؟ هغه راته وويل : هو (درته وايم يې) د هغوی ماشومان د جنت واړه دي يو به د خپل پلار سره مخامخ کيږي يا به دمور پلار سره مخامخ کيږي هغه به تر جامه او يا تر لاس را نيسي لکه دا زه چې تا له جامه را ونيسم بيا به يې تر هغه نه پريږدي چې څو يې جنت ته ننه ايستلی نه وي.

# د جنتيانو له دوزخيانو سره خبرې

وروسته ددې چې د انسانانو په مينځ کې فيصله وشي دوخيان دوزخ او جنتيان جنت ته لاړ شي کله کله به جنتيان له دوزخيانو سره خبرې هم کوي دا چې څه به ورته وايي الله فرمايي : (**وَنَادَى أَصْحَابُ الْجَنَّةِ أَصْحَابَ النارِ أَن قَدْ وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدتُّم ما وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا قَالُواْ نَعَمْ فَأَذَّنَ مُؤَذِّنٌ بَيْنَهُمْ أَن لَّعْنَةُ اللّهِ عَلَى الظالِمِينَ** . [1]

ترجمة : او غږ به وکړي صاحبان د جنت صاحبانو د اور ته داسې چې په تحقيق مونده کړ مونږ هغه (ثواب) چې وعده کړې وه رب له مونږ سره زمونږ په حقه سره نو آيا موند تاسې هغه چې وعده کړې وه رب ستاسې له ستاسې سره نو به وايي دوزخيان چې هو! نو غږ به وکړي يو غږ کوونکی (فرښته) په مينځ د دوی (جنتيانو او دوزخيانو) کې داسې چې وي د لعنت د الله په ظالمانو باندې.

**إِنَّ الأَبْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ عَلَى الأَرَائِكِ يَنظُرُونَ تَعْرِفُ فِي وُجُوهِهِمْ نَضْرَةَ النَّعِيمِ يُسْقَوْنَ مِن رَّحِيقٍ مَّخْتُومٍ خِتَامُهُ مِسْكٌ وَفِي ذَلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنَافِسُونَ وَمِزَاجُهُ مِن تَسْنِيمٍ عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا الْمُقَرَّبُونَ إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا كَانُواْ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا يَضْحَكُونَ وَإِذَا مَرُّواْ بِهِمْ يَتَغَامَزُونَ وَإِذَا انقَلَبُواْ إِلَى أَهْلِهِمُ انقَلَبُواْ فَكِهِينَ وَإِذَا**

---

[1] **سورة الاعراف آية ٤٤**

رَأَوْهُمْ قَالُوا إِنَّ هَؤُلاء لَضَالُّونَ وَمَا أُرْسِلُوا عَلَيْهِمْ حَافِظِينَ فَالْيَوْمَ الَّذِينَ آمَنُواْ مِنَ الْكُفارِ يَضْحَكُونَ عَلَى الأَرَائِكِ يَنظُرُونَ هَلْ ثُوِّبَ الْكُفارُ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ . [1]

ترجمة : بېشکه نیکان خامخا په نعیم لوی نعمت د (جنت) کې دي پر تختونو باندې ناست ګوري (د الله لقاء او د جنت نعماء (او ترې مزه به اخلي يا به ګوري دوزخيانو ته) پېژنې به ته (اې کتونکيه!) په مخونو د دوی کې تازګي د نعيم (تنعم د جنت) ور څښولی شي (هغوی ته) له خالصو شرابو مهر کړيو شويو څخه چې مهر به يې مشک وي او په دغو (شرابو او نورو جنتي نعمتونو) باندې پس بايد دي چې رغبت وکړي رغبت کوونکي (په کولو د نېکو عملونو او پرېښودلو د بدو عملونو) او ګډون د هغه (شرابو دی له اوبو د) تسنيم څخه دا (تسنيم) يوه چينه ده (په جنت کې) چې څښي به له هغې څخه د (الله) مقربان بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دی وو دوی په هغو کسانو باندې چې ايمان ئې راوړی وو خندل به يې (مسخرې به يې پرې کولې) او کله چې تيريدې منکران پر مؤمنانو باندې هغوی ته پخپلو منځونو کې سره سترګکونه وهي (لپاره استهزاء) او کله چې وګرځي خپلو کورنو ته (نو) ګرځي دوی خوشحاله (خبرې جوړوونکي په سبب د تمسخر او استهزاء پر مؤمنانو باندې) کله چې به وليدل (کفارو) دغه (مؤمنان) نو ويل به يې پخپل مينځ کې چې دا بېشکه بې لارې دي حال دا چې نه دي ليږل شوي (کافران) پر دغو (مؤمنانو) باندې ساتونکي څارونکي نو په نن (ورځ د قيامت کې) هغه کسان چې ايمان ئې راوړی وو په کفارو باندې خاندې په تختونو باندې ناست ګوري (د جنت نعمتونو ته او مزه ترې اخلي يا ګوري کفارو ته چې څرنګه عذاب ورکول کيږي) بېشکه چې جزاء ورکړه شوه کفارو ته همغسې چې کول ئې (په دنيا کې له ګناهونو څخه) .

[1] سورة المطففين آية ٢٢-٣٦

# جنتیان به په جنت کې همېشه وي

جنتیان چې کله جنت او دوزخیان چې کله دوزخ ته لاړش دوی به دلته همېشه وي بیا لدې ځای نه وتل او بل ځای ته تلل نشته الله فرمایي : قُلْ أَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِنْ ذَلِكُمْ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَأَزْوَاجٌ مُطَهَّرَةٌ وَرِضْوَانٌ مِنَ اللَّهِ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ .[1]

ترجمة : ووایه (اې محمده ﷺ دوی ته) آیا خبر درکړم تاسې ته په بهتر (څیز) له دغو (شپړو واړو دنیوي خوندونو؟) (شته) له پاره د هغو کسانو چې متقیان دي (د الله احکام عملي کوي) په نزد د رب د دوی جنتونه چې بهیږي لاندې له مانیو او ونو د هغوی ویالې چې تل به وي (دوی) په دې جنتونو کې او ښځې به وي پاکې او رضا مندي (لویه به وي له کریمه ربه دوی ته) له جانبه د الله او الله ښه لیدونکی دی (عالم په پټو او ښکاره احوالو) د بندګانو (نو هرچا ته به د خپل عمل جزا ورکړي).

أُولَئِكَ جَزَاؤُهُمْ مَغْفِرَةٌ مِنْ رَبِّهِمْ وَجَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ .[2]

ترجمة : هم دا متقیان (چې مخکې یاد شول) جزاء د دوی ښښنه ده له (جانبه د) رب د دوی او جنتونه دي چې بهیږي لاندې له (ونو او مانیو د) هغو ویالې چې تل به وي دوی په هغو (جنتونو) کې او څومره ښه دی اجر (مزدوري) د عاملینو (دغه مغفرت او جنت) .

لَكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا نُزُلًا مِنْ

---

1 سورة آل عمران آية ١٥
2 سورة آل عمران آية ١٣٦

عِنْدِ اللَّهِ وَمَا عِنْدَ اللَّهِ خَيْرٌ لِلْأَبْرَارِ .[1]

ترجمة : ليكن هغه كسان چې ويريږي دوی له ربه خپله شته دوی لره جنتونه چې بهيږي له لاندې د (ونو او مانيو د) هغو ويالې تل به وي دوی په هغو (جنتونو) کې په دې حال کې چې (دغه جنتونه ځای د) مېلمستيا دی له جانبه د الله او هغه (باقي شی) چې په نزد د الله دي غوره دي له پاره د نيکانو .

تِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ يُدْخِلْهُ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ .[2]

ترجمة : دا (د يتيمانو ، ميراثونو ، وصيت او د دين تېر شوي حكمونه) حكمونه د الله دي او هرڅوک چې ومني حكم د الله او د رسول د ده نو داخل به كړي الله دغه (اطاعت كونكي په هسې) جنتونو کې چې بهيږي له لاندې د (مانيو او ونو د) هغو ويالې همېشه به وي (دوی) په دې (جنتونو) کې او دا (ننوتل جنت ته) كاميابي لويه ده .

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا لَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُطَهَّرَةٌ وَنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيلًا .[3]

ترجمة : او هغه كسان چې ايمان ئې راوړی دی او كړي ئې دي ښه (عملونه) زر به ننه باسو مونږ دوی په (هغو) جنتونو کې چې بهيږي له لاندې د (مانيو او ونو) د دوی ويالې همېشه وي به دوی په دغو جنتونو کې تل (بې انتها او بلا انقطاع) وي به دوی ته په دې جنتونو کې ښځې پاكې كړل شوې (له ټولو ناپاكيو څخه) او ننه به باسو

---

[1] سورة آل عمران آية ١٩٨

[2] سورة النساء آية ١٣

[3] سورة النساء آية ٥٧

مونږ دوی په ګڼو سیورو (په دائمي نعمت او راحت) کې.

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللَّهِ قِيلًا .[1]

ترجمة : او هغه کسان چې ایمان ئې راوړی دی او کړي ئې دي ښه عملونه نو ژربه داخل کړو مونږ دوی په جنتونو کې چې بهیږي له لاندې (د ماڼیو او ونو) د دوی ویالې چې همېشه به وي دوی په دغو (جنتونو) کې تل تر تله وعده کړېده الله حقه (وعده) او څوک دي زیات رښتیني له الله نه په خبره او وعده کې.

قَالَ اللَّهُ هَذَا يَوْمُ يَنفَعُ الصَّادِقِينَ صِدْقُهُمْ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا رَّضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُواْ عَنْهُ ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ (119)..[2]

ترجمة : وبه فرمايي الله (په قيامت کې) دا ورځ د دې ده چې نفع به رسوي صادقينو ته صدق د دوی (چې په دنيا کې يې کړی وي) (مقرر) دي دوی ته (هسې) جنتونه چې بهيږي له لاندې (ونو او ماڼيو د) د هغو ويالې (د اوبو، شودو، شرابو او شاتو) تل به وي دوی په هغه کې همېشه راضي شوی دی الله له دوی نه (په طاعت سره) او راضي دي دوی له الله څخه (په موندلو د ثواب) دا (خلود او رضوان) بری دی ډېر لوی.

وَأَمَّا الَّذِينَ سُعِدُوا فَفِي الْجَنَّةِ خَالِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمَوَاتُ وَالْأَرْضُ إِلَّا مَا شَاءَ رَبُّكَ عَطَاءً غَيْرَ مَجْذُوذٍ .[3]

ترجمة : او هرڅه هغه کسان چې نېک بختان شوي دي نو په جنت کې به وي همېشه به وي په هم دغه

---

1 سورة النساء آية ١٢٢
2 سورة المائدة
3 سورة هود آية ١٠٨

جنت کې ترخو چې وي آسمانونه او زمکه مګر چې اراده وفرمايي رب ستا (چې ئې بوزي رضوان او لقاء الرحمن ته) دغه ورکړه عطاء بخشش دی بې انتهاء او بلا انقطاع.

حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : إِذَا دَخَلَ أَهْلُ النَّارِ النَّارَ ، وَأُدْخِلَ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ ، يُجَاءُ بِالْمَوْتِ كَأَنَّهُ كَبْشٌ أَمْلَحُ ، فَيُنَادِي مُنَادٍ : يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ ، تَعْرِفُونَ هَذَا ؟ قَالَ : فَيَشْرَئِبُّونَ وَيَنْظُرُونَ ، وَكُلٌّ قَدْ رَأَوْهُ ، فَيَقُولُونَ : نَعَمْ ، هَذَا الْمَوْتُ ، ثُمَّ يُنَادِي : يَا أَهْلَ النَّارِ ، تَعْرِفُونَ هَذَا ؟ فَيَشْرَئِبُّونَ وَيَنْظُرُونَ ، وَكُلُّهُمْ قَدْ رَأَوْهُ فَيَقُولُونَ : نَعَمْ ، هَذَا الْمَوْتُ ، فَيُؤْخَذُ فَيُذْبَحُ ، ثُمَّ يُنَادِي : يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ ، خُلُودٌ وَلَا مَوْتَ ، وَيَا أَهْلَ النَّارِ ، خُلُودٌ وَلَا مَوْتَ ، فَذَلِكَ قَوْلُهُ : {وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ إِذْ قُضِيَ الْأَمْرُ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ وَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ} (39) [1]

ترجمة : کله چې دوزخيان دوزخ ته ننوزي او جنتيان جنت ته ننوزي مرګ به د ګډ (پسه) په شکل کې راوستل شي اواز کوونکی به اواز وکوي اې جنتيانو دا پېژنئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : ټول جنتيان به ورته وګوري او ټول به يې ووني وبه وايي هو دا مرګ دی بيا به اواز وشي اې دوزخيانو دا پېژنئ ټول به ورته متوجه شي او ورته به وګوري چې ټول يې ووينې دوی به ووايي هو دا مرګ دی بيا به را ونيول شي او هلال به کړل شي بيا به اواز کوونکی اواز وکوي اې جنتيانو دلته اوس پاتې کېدل همېشه دي مرګ نشته او اې دوزخيانو دلته اوس پاتې کېدل همېشه دي او مرګ نشته او همدا مطلب دی چې الله فرمايي : او دوی ته وېره ورکړه د غم دورځې نه چې کله د خبرې فيصله وشي او دوی په غفلت کې دي او دوی ايمان نه راوړي .

---

[1] النسائي

# جنت ته به څوک ځي؟

مونږ باید پدې پوه شو او پدې مو یقین وي چې مونږ د جنت لپاره پیدا شوي یو او الله مونږ صرف ددې لپاره پیدا کړي یو چې په مونږ باندې رحم وکوي او مونږ الله ددې لپاره پیدا کړي یو چې مونږ د هغه عبادت وکوو او پدې عبادت سره فایده مونږ ته ورسیږي زمونږ عبادت ته الله هیڅ ډول ضرورت نلري بلکه مونږ دېته اړ یو چې د هغه عبادت وکوو الله زمونږ عبادت خوښوي الله فرمایي : إِلاَّ مَن رَّحِمَ رَبُّكَ وَلِذَلِكَ خَلَقَهُمْ .[1]

ترجمة : مګر هغه څوک چې رحم پرې وفرمایي رب ستا او له اختلافه ئې وساتي او د پاره د دې (رحمت) پیدا کړي دي الله دوی .

رسول الله ﷺ فرمایل : كُلُّ أُمَّتِي يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَنْ أَبَى قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَنْ يَأْبَى قَالَ مَنْ أَطَاعَنِي دَخَلَ الْجَنَّةَ وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ أَبَى .[2]

ترجمة : زما امتیان به ټول جنت ته ځي بغیر د هغه کسانو څخه چې جنت ته له تلو څخه انکار وکوي صحابه وو پوښتنه وکوله چې جنت ته به له ننوتلو څخه څوک انکار کوي یا رسول الله ﷺ؟

رسول الله ﷺ وفرمایل : هغه کسان چې زما نافرماني وکوي هغه جنت ته د ننوتلو څخه انکار کوي .

---

1 سورة هود آية ١١٩

2 متفق عليه

جنت الله ددې لپاره پیدا کړی دی چې رښتینو مؤمنانو ته وربانديې عزت ورکړي ترڅو چې هر مؤمن باید داسې عملونه وکړي او داسې کارونه وکړي چې په خپل ځان یې داسې عقیده جوړه شي چې څوک د **لا إله إلا الله محمد رسول الله** ګواهي ورکړي هغه به خامخا جنت ته ځي د جنت په اړه پورته تاسې صفتونه ولوستل او تاسې ته به دا ښکاره شوې وي چې جنت یو قیمتي شی دی او هېڅوک یو قیمتي شی چا ته بغیر د قیمت څخه نه ورکوي نو د جنت لپاره قیمت څه شی دی؟ اصل قیمت د جنت په نېکو عملونو کې کوښښ کول دي او جنت ته د تللو لپاره د هغه قیمت اداء کول دي په لاندې څو کرښو کې زه تاسې ته د جنت لاره واضح کول غواړم چې پدې لاره باندې یو څوک کولی شي جنت ته ننوزي په قرآن کریم او احادیثو کې ځینې داسې عملونه ښودل شوي دي چې هغه انسان وکوي الله او د هغه رسول ﷺ ورسره د جنت وعده کړېده هغه هم پدې معنی نه چې څوک دا عملونه وکوي هغه د جنت حقدار کیږي بلکه کله چې بنده دا عملونه وکوي الله په هغه باندې رحمت کوي او جنت ته یې ننباسي ځکه جنت یو داسې ځای دی ، داسې نعمتونه دي هلته داسې یو ډول ژوند دی چې انسان ټول عمر په سجده پریوزي نو بیا هم هغه په خپل عبادت سره نشي ګټلی ترڅو یې الله ورته په خپل رحم سره ورنه کړي .

جنت ته تلونکي څه کسان قرآن کریم یاد کړي دي او د څه کسانو لپاره په احادیثو کې جنت یاد کړل شوی دی زه به اول هغه کسان یاد کړم چې قرآن کریم ورته د جنت وعده ورکړېده او بیا به په دوهمه برخه کې د مثال په توګه یو څه داسې کسان یادکړم چې په احادیثو کې ورته جنت یاد کړل شوی دی .

په قرآن کریم کې لاندې کسانو ته جنت یاد شوی

دی او لــه دوی سره د جنت وعده شوېده .

## ایـمـان او نــیک عمل کــونــکي

هغه کسان چې ایـمـان راوړي او بـیـا نـېک اعمال کــوي الله ورسره د جنت وعده کړېده الله فــرمــایــي :
وَبَشِّرِ الَّذِين آمَنُواْ وَعَمِلُواْ الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ كُلَّمَا رُزِقُواْ مِنْهَا مِن ثَمَرَةٍ رِّزْقاً قَالُواْ هَذَا الَّذِي رُزِقْنَا مِن قَبْلُ وَأُتُواْ بِهِ مُتَشَابِهاً وَلَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (25) . [1]

تــرجـمـة : او زیــری ورکــړه (اې مـحـمـده ﷺ) هغو کسانـو تـه چې ایـمـان ئـې راوړی دی (پـه تـولـو مـؤمـن بـه شیـانـو) او کـړي ئـې دي ښه (عملـونـه) پـه دې چې بـې‌شکه دوی تـه جنـتـونـه دي چې بـهـیـږي لانـدې (تــر مـا نـیـو او ونـو) د هغو ویــالــې هر کـلـه چې روزي ورکــړه شي دغو (جنـتـیـانـو) تـه لـه جنـتـونـو څخه څه مـېوه لـپـاره د خوړلـو نـو وایـي دا (جنـتـیـان) دا همغسې مـېوه ده چې راکـړل شوې وه مـونـږ تـه پـخـوا لـه دې نـه او رابـه وړه شي دوی تـه مـېوه هم رنـګـه (او پـه خونـد کـې سره بـدلــه) او وي بـه دوی تـه پـه دغو (جنـتـونـو) کـې ښځې ښې پـاکـې او دوی بـه وي پـه دغو (جنـتـونـو) کـې همـېشه .

وَمَن يَعْمَلْ مِنَ الصَّالِحَاتَ مِن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَأُوْلَئِكَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَلاَ يُظْلَمُونَ نَقِيرًا (124) . [2]

تــرجـمـة : او هر هغه څوک چې عمل وکـړي لــه (ځیـنـو) نـیـکو کـارونـو لــه نـاریـنـه وو او لــه ښځو حال دا چې دی مـؤمـن وي نـو دغه (نـیـکو کـاران) داخل بـه شي پـه جنت کـې او ظلـم بـه ونـشي پـه دوی (پـه انـدازه) د نـقـیـر (هم یـعـنـي پـر دوی پـه هېڅ شي کـې هېڅ ظلـم نــه کـیـږي) .

1 سورة البقرة آية ٢٥
2 سورة النساء آية ١٢٤

# اطاعت کوونکی

هغه کس چې د الله او د رسول الله ﷺ اطاعت کوي له هغه سره هم د جنت وعده شویده الله فرمايي : **لَيْسَ عَلَى الْأَعْمَى حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ يُدْخِلْهُ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَمَن يَتَوَلَّ يُعَذِّبْهُ عَذَابًا أَلِيمًا (17)** .[1]

ترجمة : نشته پر ړانده باندې هېڅ ګناه او تکليف او نه په ګوډ باندې هېڅ ګناه او تکليف او نه په ناروغ باندې هېڅ ګناه او تکليف (ځکه چې جهاد پر دغو معذورانو فرض نه دی) او هر هغه څوک چې اطاعت وکړي ومني حکم د الله او د رسول الله ﷺ نو داخل به ئې کړي (الله ) دی په جنتونو کې چې بهيږي له لاندې (د ونو او ماڼيو) د هغو (څلور قسمه) ويالې او هر هغه څوک چې ګرځېدو (له احکامو د الله ) نو (الله ) به په عذاب کړي دی په عذاب ډېر دردناک سره.

[1] سورة الفتح

# هغه کسان چې پرهیزګاران وي

هغه کسان چې له الله نه ډاریږي او ددې امله له ګناهونو څخه ځان ساتي دوی به هم جنت ته ځي الله فرمايي :

إنَّ المُتَّقِينَ فِي مَقَام أمِين * فِي جَنَّات وَعُيُون .[1]

ترجمة : بېشکه متقين به په داسې ځای کې وي چې هغه به په امن وي او په جنتونو او چينو کې به وي .

وَجَنَّة عَرْضُهَا السَّمَوَاتُ وَالأرْضُ أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ .[2]

ترجمة : او داسې جنت چې پلنوالی يې دومره دی لکه د زمکې او اسمانونو د هغه کسانو لپاره تيار کړل شوی دی چې له الله څخه ډاريږي.

لِلَّذِينَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الأنْهَارُ .[3]

ترجمة : (شته) له پاره د هغو کسانو چې متقيان دي (د الله احکام عملي کوي) په نزد د رب د دوی جنتونه چې بهيږي لاندې له ماڼيو او ونو د هغوی ويالې

لَكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الأنْهَارُ .[4]

ترجمة : ليکن هغه کسان چې د خپل رب څخه ډاريږي د هغوی لپاره جنتونه دي چې له لاندې د ماڼيو د هغه به ويالې بهيږي.

---

1 سورة الدخان آية ٥١-٥٢
2 سورة آل عمران آية ١٣٣
3 سورة آل عمران آية ١٥
4 سورة آل عمران آية ١٩٨

وَسِيقَ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ إِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا حَتَّى إِذَا جَاؤُوهَا وَفُتِحَتْ أَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلَامٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوهَا خَالِدِينَ (73) . [1]

ترجمة : او بېول کیږي به هغه کسان چې وېرېدل به دوی له ربه خپله طرف د جنت ته ډلې ډلې تر هغه پورې چې راشي دوی جنت ته حال دا چې پرانیستلی شوې به وي دروازې د دغه (جنت) او وبه وایي دوی ته خزانچیان (متصرفان) د جنت سلام د وي پر تاسې پاک یئ تاسې (له ګناهونو) پس ننوځئ جنت ته په دې حال کې چې همېشه اوسېدونکي اوسئ (په ده کې) .

جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ لَهُمْ فِيهَا مَا يَشَآؤُونَ كَذَلِكَ يَجْزِي اللّهُ الْمُتَّقِينَ (31) . [2]

ترجمة : جنتونه دي د همېشه اوسېدلو چې ننوزي به دوی (په) هغو کې چې بهیږي به لاندې (د ونو او مانیو) د دوی (څلور قسمه) ویالې چې وي به (تل) دوی ته په دغو باغونو کې هر هغه (نعمتونه) چې اراده یې کوي دوی په شان د دغې (جزاء) جزاء ورکوي الله پرهېزګارانو ته .

إنَّ المُـتَّقِينَ فِي جَنَّات وَعُـيُون * آخِذِينَ مَا آتَاهُمْ رَبُّهُمْ . [3]

ترجمة : بېشکه وېرېدونکي له الله او ځان ساتونکي له معاصیو به په جنت کې وي او په چینو کې به وي یعنې څښونکي د اوبو د دې چینو به وي اخیستونکي به وي هغو نعمتونو لره چې ورکړي وي دوی ته رب د دوی

إنَّ المُـتَّقِينَ فِي جَنَّات وَنَهَر * فِي مَقْعَدِ صِدْق عِنْدَ مَلِيك مُقْتَدِر . [1]

---

1 سورة الزمر
2 سورة النحل
3 سورة الذاريات

ترجمة : بېشکه وېرېدونکي به په جنتونو کې وي او په ويالو کې وي چې څښي له اوبو شرابو، شاتو ، شودو د هغو) په مجلس رښتيا (د جنت) کې په نزد د دباچا لوى قدرت لرونکي (چې هېڅوک يې نشي عاجزولى) .

إنَّ لِلْمُـتَّقِينَ عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنَّاتِ النَّعِيمِ. [2]

ترجمة : بېشکه وېرېدونکي به د دوى د رب سره په جنتونو او نعمتونو کې وي .

إنَّ المُـتَّقِينَ فِي ظِلال وَعُـيُون * وَفَوَاكِهَ مِمَّا يَشْتَـهُونَ. [3]

ترجمة : بېشکه وېرېدونکي به په سيوريو او چينو (د جنت) کې وي او پداسې ميوو کې به وي چې د دوى زړه غواړي .

إنَّ لِلْمُـتَّقِينَ مَفَازاً * حَدَائِقَ وَأعْنَاباً . [4]

ترجمة : بېشکه خاص متقيانو ته (په آخرت کې) ځاى د خلاصي بري کاميابي دى باغونه (د ميوې) او د انګورو (ونې) .

تِلْكَ الجَنَّةُ الَّتِي نُورِثُ مِنْ عِبَادِنَا مَنْ كَانَ تَقِيّاً . [5]

ترجمة : دغه (چې مخکې مو ذکر وکړ) جنت دى هغه چې په ميراث به ورکوو مونږ له بندګانو خپلو هغه چاته چې وي پرهېز ګار.

مَّثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ أُكُلُهَا دَآئِمٌ وِظِلُّهَا تِلْكَ

---

1 سورة القمر آية ٥٤-٥٥
2 سورة القلم اية ٣٤
3 سورة المرسلات آية ٤١-٤٢
4 سورة النباء آية ٣١-٣٢
5 سورة مريم آية ٦٣

عُقْبَى الَّذِينَ اتَّقَواْ وَّعُقْبَى الْكَافِرِينَ النَّارُ (35) . [1]

ترجمة : مثال (صفت) د جنت هغه چې وعده کړې شوې ده (په هغه سره) پرهېزګاران (دا دي چې) بهيږي (همېشه) له لاندې (د باغونو او مانيو) د هغه (ځلور قسمه) ويالې ميوې د هغې (به همېشه بې انتهاء او بې انقطاع) وي او سورى د هغه (به هم همېشه وي بې زواله) دا (جنت) عاقبت (او مرجع) دى د هغو کسانو چې پرهېزګاري کوي او عاقبت (کې ځاى) د کافرانو اور (د دوزخ) دى.

تِلْكَ الدَّارُ الْآخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ (83). [2]

ترجمة : دغه کور د آخرت (چې جنت دى) ورکوو مونږ دا د پاره د هغو کسانو چې نه لرې اراده د لوئي (او تکبر) په زمکه کې او نه فساد ظلم کوي (پر خلقو) او عاقبت ښه خاتمه د پاره د پرهيز ګارانو ده.

مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ فِيهَا أَنْهَارٌ مِّن مَّاء غَيْرِ آسِنٍ وَأَنْهَارٌ مِن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ وَأَنْهَارٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى وَلَهُمْ فِيهَا مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ وَمَغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ. [3]

ترجمة : مثل صفت بيان د جنت هغه چې وعده ئې کړل شوې ده له پرهېزګارانو سره په هغه کې ويالې دي له اوبو چې نه به وي بد خوند (بدلېدونکي په مزه داوبو کې) او ويالې دي له شودو چې نه وي متغيرې (مزه ئې بلکه صاف او خوندوره ده) مزه د هغو او ويالې دي له شرابو چې مزه ورکوونکي دي (هغه) څښونکيو ته او

---

1 سورة الرعد
2 سورة القصص
3 سورة محمد آية ١٥

ويالې دي له شاتو (ګبين) صفا کړيو شويو (له خيريو نه) (او شته) دوی ته په دغه (جنت) کې له هر راز (قسم) مېوو او مغفرت له (طرفه د) رب د دوی .

او داسې نور په مختلفو آيتونو کې د هغه کسانو سره د جنت وعده شوېده چې هغوی له الله څخه ډاريږي .

## د الله په دين باندې ټينګ پاتې کيدونکي

هغه کسان چې ايمان راوړي او بيا په هر ډول حالاتو کې د الله په دين باندې ټنيک پاتې شي لدې کسانو سره هم الله د جنت وعده کړېده الله فرمايي : إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللَّهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوا تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةُ أَلَّا تَخَافُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَبْشِرُوا بِالْجَنَّةِ الَّتِي كُنتُمْ تُوعَدُونَ (30) .[1]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې وويل رب زمونږ الله دی بيا پدې خبره باندې ټينګ پاتې شول د رحمت ملائک به وربانده نازليږي (او ورته وايي به دا چې) تاسې مه ډارېږئ مه غمجن کېږئ د هغه جنت زيری قبول کړئ چې لتاسې سره ئې وعده کېده .

## عاجزي کوونکي

هغه کسان چې عاجزي کوي او تکبر نه کوي او ځان ته په لوی نظر نه ګوري او نه خپل ځان لوی ښکاره کوي دا عمل هم الله ته ډېر ګران دی په يو حديث کې راغلي دي چې د چا په زړه کې يوه ذره کبر هم وي هغه به جنت ته نه ځي نو لدې عاجزي کونکو سره هم الله د جنت وعده کړېده الله فرمايي

[1] سورة فصلت

: إِنَّ الَّذِينَ آمَنُواْ وَعَمِلُواْ الصَّالِحَاتِ وَأَخْبَتُواْ إِلَى رَبِّهِمْ أُوْلَئِكَ أَصْحَابُ الجَنَّةِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (23). [1]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې ایمان ئې راوړی دی او کړي ئې دي ښه عملونه او عاجزي کوي دوی رب خپل ته دغه کسان صاحبان (اوسېدونکي) د جنت دي دوی به په دې جنت کې همېشه وي.

إِنَّ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَالْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْقَانِتِينَ وَالْقَانِتَاتِ وَالصَّادِقِينَ وَالصَّادِقَاتِ وَالصَّابِرِينَ وَالصَّابِرَاتِ وَالْخَاشِعِينَ وَالْخَاشِعَاتِ وَالْمُتَصَدِّقِينَ وَالْمُتَصَدِّقَاتِ وَالصَّائِمِينَ وَالصَّائِمَاتِ وَالْحَافِظِينَ فُرُوجَهُمْ وَالْحَافِظَاتِ وَالذَّاكِرِينَ اللَّهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتِ أَعَدَّ اللَّهُ لَهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا (35). [2]

ترجمة : بېشکه چې مسلمان سړي او مسلمانې ښځې او مؤمنان سړي او مؤمنانې ښځې او اطاعت کوونکي سړي او اطاعت کوونکې ښځې او رښتین سړي او رښتینې ښځې او صبر کوونکي سړي او صبر کوونکې ښځې او وېرېدونکي عاجزي کوونکي سړي او وېرېدونکې عاجزي کونکې ښځې او خیرات کوونکي سړي او خیرات کوونکې ښځې او روژه نیوونکي سړي او روژه نیوونکې ښځې او حفاظت کوونکي سړي ځای د شهوت خپل (له پردیوښځو) او ساتونکې ښځې (ځای د شهوت خپل له پردیو سړیو) او ذکر کوونکي سړي الله لره (په ذکر) ډېر او ذکر کوونکې ښځې (الله لره په ذکر ډېر) تیار کړی دی الله دغو (لسو واړو جامع الطاعاتو سړیو او ښځو ته) مغفرت او اجر ډېر لوی (جنت) .

## په آیتونو کې غور کوونکی

هغه کس چې د الله آیتونه آوري نو په هغه کې غور او فکر کوي او د هغه په مطلب ځان پوهوي د هغه

[1] سورة هود
[2] سورة الاحزاب

چې ورکړي دي مونږ دوی ته لګوي (ئې په لاره د الله کې) پس نه دی معلوم هېڅ نفس ته (نه فرښتې او نه نبي ته) هغه شی چې پټ کړل شوی دی دوی ته له یخوالي د سترګو نه د پاره د جزاء د هغه عمل چې وو دوی چې کاوه به یې (پټ) .

التَّائِبُونَ الْعَابِدُونَ الْحَامِدُونَ السَّائِحُونَ الرَّاكِعُونَ السَّاجِدونَ الآمِرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّاهُونَ عَنِ الْمُنكَرِ وَالْحَافِظُونَ لِحُدُودِ اللّهِ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ (112).[1]

ترجمة : (دوی) توبه کوونکي دي عبادت کوونکي شکر کوونکي (الله ته په اخلاص) بې تعلق پاتې کېدونکي دي (له دنیوي مزو نه) رکوع کوونکي دي سجده کوونکي دي حکم کوونکي دي په ښېګڼو او منع کوونکي دي له بدو کارونو او ساتونکي دي د حدونو د الله (یعني د هغه د احکامو) او زېری ورکړه (اې محمده ﷺ) مؤمنانو ته (چې موصوف دي پدې صفاتو سره د جنت)

په بل ځای کې په سورة فرقان کې د څو کسانو لپاره جنت یاد کړل شوی دی یوه ډله له هغوی نه هغه کسان دي چې هغوی عبادت کوي الله فرمایي :
وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَقِيَامًا (64) .[2]

ترجمة : او (بندګان د رحمن) هغه کسان دي چې شپه تېروي رب خپل ته سجده کوونکي او درېدونکي.

بیا د څه نورو کسانو د یادولو نه وروسته الله فرمایي : أُوْلَئِكَ يُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ بِمَا صَبَرُوا وَيُلَقَّوْنَ فِيهَا تَحِيَّةً وَسَلَامًا (75)[3]

---

1 سورة التوبة
2 سورة فرقان
3 سورة الفرقان

ترجمة : دغه کسان (چې موصوف په دغو صفاتو سره وي) جزا به ورکړله شي دوی ته په هسکو ماڼیو (د جنت) په سبب د هغه چې صبر ئې کړی وو او وا به چولی شي پر دوی په دغه جنت کې تحية دعاء او سلام .

انَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ (15) آخِذِينَ مَا آتَاهُمْ رَبُّهُمْ إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَلِكَ مُحْسِنِينَ (16) كَانُوا قَلِيلًا مِّنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ (17) .[1]

ترجمة : بېشکه وېرېدونکي له الله او ځان ساتونکي له معاصيو به په جنت کې وي او په چينو کې به وي يعني څښونکي د اوبو د دې چينو به وي اخيستونکي به وي هغو نعمتونو لره چې ورکړي وي دوی ته رب د دوی بېشکه دوی وو پخوا له دې څخه! يعني په دنيا کې محسنان او نيکي کوونکي وو به دوی (په دغه وصف) چې په لږ برخه د شپې کې به اوده کېدل او په اکثره د شپې کې به يې عبادت کاوه.

## آمر بالمعروف ناهي عن المنكر

هغه کس چې خلکو ته په نېکو کارونو باندې امر کوي او له بدو کارونو څخه يې منع کوي او پدې سره يې مطلب د الله رضا وي دا الله ته ډېر گران او خوښ عمل دی څوک چې دا کار کوي له هغوی سره هم د جنت وعده شوېده الله فرمايي : وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُقِيمُونَ الصَّلاَةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَيُطِيعُونَ اللّهَ وَرَسُولَهُ أُوْلَئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللّهُ إِنَّ اللّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ (71) وَعَدَ اللّهُ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللّهِ أَكْبَرُ ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ (72) .[2]

---

[1] سورة الذاريات
[2] سورة التوبة

ترجمة : او سړي مؤمنان او ښځې مؤمنانې ځینې د دوی دوستان دي د ځینو نورو (او په ایمان کې تول سره یو شان دي) حکم کوي دوی په نیکیو (چې د الله او د رسول اطاعت دی) او منع کوي له بدیو چې (د الله او د رسول نه مخالفت دی) او دروي (له ټولو حقونو سره سم اداء کوي) مونځ او ورکوي دوی زکات او حکم مني د الله او (حکم مني) د رسول الله ﷺ دغه کسان ژربه رحم وکړي په دوی الله بېشکه چې الله ښه غالب قوي دی (د حکمونو په جاري کولو کې) ښه د حکمت خاوند (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي) وعده کړېده الله له نارینه وو مؤمنانو او له ښځو مؤمناتو سره د جنتونو چې بهیږي له لاندې (د ماڼیو او ونو) د هغو (څلور قسمه) ویالې تل به وي دوی په دغو (جنتونو) کې او (وعده کړې ده الله ) د ځایونو پاکو (چې ثابت دي) په جنتونو د تل اوسېدلو کې او رضاء له (جانبه د) الله ډېره لویه ده (له جنتونو او نعمتونو او نورو څخه) دغه (رضاء د الله ) هم دغه بری دی ډېر لوی.

التَّائِبُونَ الْعَابِدُونَ الْحَامِدُونَ السَّائِحُونَ الرَّاكِعُونَ السَّاجِدونَ الآمِرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّاهُونَ عَنِ الْمُنكَرِ وَالْحَافِظُونَ لِحُدُودِ اللّهِ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ (112).[1]

ترجمة : (دوی) توبه کوونکي دي عبادت کوونکي شکر کوونکي (الله ته په اخلاص) بې تعلق پاتې کېدونکي دي (له دنیوي مزو نه) رکوع کوونکي دي سجده کوونکي دي حکم کوونکي دي په ښېګڼو او منع کوونکي دي له بدو کارونو او ساتونکي دي د حدونو د الله (یعني د هغه د احکامو) او زیرى ورکړه (اې محمده ﷺ) مؤمنانو ته (چې موصوف دي پدې صفاتو سره د جنت)

1 سورة التوبة

# مهاجرين او انصار

د اسلام په شروع کې چې له هر لوري نه اسلام او مسلمانانو ته سختي وه په هغه وخت کې چې چا د خپل دين د ساتنې لپاره هجرت کړی دی او هغه کسانو چې لدې مهاجرينو او مجاهدينو سره ئې مرسته کړېده له هغوی سره هم د جنت وعده شوېده الله فرمايي : **وَالَّذِينَ آمَنُواْ وَهَاجَرُواْ وَجَاهَدُواْ فِي سَبِيلِ اللّهِ وَالَّذِينَ آوَواْ وَّنَصَرُواْ أُولَئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا لَّهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ (74)**. [1]

ترجمة : او هغه کسان چې ايمان ئې راوړی دی او هجرت ئې کړی دی او جهاد ئې کړی دی په لاره د الله کې او هغه کسان چې ځای ئې ورکړی دی (ماجرينو ته) او مددګاري ئې کړېده (له رسول الله او مهاجرينو سره) دغه موصوف په دغو صفاتو سره هم دوی دي مؤمنان په حقه (رښتيا) سره دوی لره دی مغفرت او رزق نيک (د عزت چې جنت دی) .

**وَالسَّابِقُونَ الأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالأَنصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُم بِإِحْسَانٍ رَّضِيَ اللّهُ عَنْهُمْ وَرَضُواْ عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ (100)** . [2]

ترجمة : او هغه وړاندني اولني (ايمان لرونکي) له مهاجرينو نه او له انصارو نه او (نور) هغه کسان چې متابعت کړی دی دوی د (سابقانو) په احسان (نيکي) سره راضي شوی دی الله له دوی نه (په قبول د طاعت سره) او راضي شوي دي دوی له الله نه (په اعطاء د نعمت) او تيار کړی دی (الله ) دوی ته جنتونه چې بهيږي لاندې د (ونو او ماڼيو د) دوی (ځلور قسمه) ويالې چې تل به وي دوی په هغو کې همېشه ، دغه (رضا او جنت) بری دی ډېر

1 **سورة الانفال**
2 **سورة التوبة**

لوی.

# توکل کونکي

هغه کسان چې په الله باندې توکل کوي له هغوی سره هم د جنت وعده شوېده الله فرمايي : **وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَنُبَوِّئَنَّهُم مِّنَ الْجَنَّةِ غُرَفًا تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا نِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ (58) الَّذِينَ صَبَرُوا وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ (59)** . [1]

ترجمة : او هغه (کسان) چې ايمان ئې راوړی دی او کړي ئې دي ښه (عملونه) خامخا ځای به ورکړو دوی ته له جنته په جګو ماڼيو کې چې بهيږي لاندې له (ونو او ماڼيو د) هغو ويالې (ځلور) حال دا چې تل به اوسيږي په دغو (ماڼيو کې) ښه دی اجر د دغو عمل کوونکو (دا جنت) هغه (عمل کوونکي) چې صبر ئې کړی (په طاعت او مصيبت او له معصيت نه) او (خاص) په رب خپل توکل کوي.

**فَمَا أُوتِيتُم مِّن شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَمَا عِندَ اللَّهِ خَيْرٌ وَأَبْقَى لِلَّذِينَ آمَنُوا وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ (36).** [2]

ترجمة : پس هغه چې درکړل شوي دي تاسې ته (اې مخاطبانو) له څه څيزه (لکه اسباب د دنيا) لږ خسيس ده (چې زائليږي) او هغه ثواب چې په نزد د الله دی خير او غوره او ډېر باقي پاتې کېدونکی دی د پاره د هغو کسانو چې ايمان ئې راوړی دی او (خاص) پر رب خپل توکل کوي دوی.

**إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ (2) الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلاَةَ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ (3)**

---

[1] **سورة العنكبوت**
[2] **سورة الشورى**

أُوْلَئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا لَّهُمْ دَرَجَاتٌ عِندَ رَبِّهِمْ وَمَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ (4).[1]

ترجمة : بېشکه خبره هم داده چې حقاني مؤمنان هغه کسان دي چې کله یاد کړل شي (دوی ته نوم د) الله نو ویریږي زړونه د دوی او کله چې ولوستی شي پر دوی باندې آیتونه د الله نو زیاتوي دغه (آیتونه) دوی لره ایمان (د دوی) او پر رب (پالونکي) خپل باندې توکل (اعتماد) کوي دوی (دوی) هغه مؤمنان دي چې قائموي (سم اداء کوي سره له ټولو حقونو) د دوی مونځ او له ځینې د هغه ماله چې ورکړی دی مونږ دوی ته نفقه کوي (لګوي په لاره د الله کې) دغه کسان هم دوی دي مؤمنان په حقه سره شته دوی ته درجې په نزد د رب د دوی او مغفرت (بښنه) او رزق نېک (د عزت).

## د الله د رضا لپاره مصرف کوونکی

هغه کس چې د الله د رضا د حاصلولو لپاره خپل مال مصرف کوي او د الله په لاره کې مصرف کوي له هغه سره هم د جنت وعده شوېده الله فرمایي : **وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ (16) فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاء بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ (17)** .[2]

ترجمة : او ځینې له هغو مالونو چې ورکړي دي مونږ دوی ته لګوي (ئې په لاره د الله کې) پس نه دی معلوم هېڅ نفس ته (نه فرښتې او نه نبي ته) هغه شی چې پټ کړل شوی دی دوی ته له یخوالي د سترګو نه د پاره د جزاء د هغه عمل چې وو دوی چې کاوه به یې (پټ) .

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ (15) آخِذِينَ مَا آتَاهُمْ رَبُّهُمْ إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَلِكَ

---

1 **سورة الانفال**
2 **سورة السجدة**

مُحْسِنِينَ (16) كَانُوا قَلِيلًا مِّنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ (17) وَبِالْأَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُونَ (18) وَفِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ (19).[1]

ترجمة : بېشكه وېرېدونكي له الله او ځان ساتونكي له معاصيو به په جنت كې وي او په چينو كې به وي يعني ښونكي د اوبو د دې چينو به وي اخيستونكي به وي هغو نعمتونو لره چې وركړي وي دوى ته رب د دوى بېشكه دوى وو پخوا له دې څخه! يعني په دنيا كې محسنان او نيكي كوونكي وو به دوى (په دغه وصف) چې په لږ برخه د شپې كې به اوده كېدل او په اكثره د شپې كې به يې عبادت كاوه او په وخت د ګهيځ (سحر وختي) كې دوى مغفرت غوښت له الله نه د ګناهونو خپلو او په مالونو د دوى كې حق او برخه وه سوالګر لره او صبر كوونكي لره (يعني مسكين سوال نه كونكي لره).

إِنَّ الْمُصَّدِّقِينَ وَالْمُصَّدِّقَاتِ وَأَقْرَضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَاعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيمٌ (18).[2]

ترجمة : بېشكه خيرات وركوونكي سړي او خيرات وركوونكې ښځې او هغه څوك چې قرضونه يې كړي دي له الله سره قرض نيک دوه چند به كړل شي دوى ته (ثواب د قرض د هغه) او وي به دوى ته اجر ثواب ډېر لوى (چې جنت دى).

وَالَّذِينَ صَبَرُواْ ابْتِغَاء وَجْهِ رَبِّهِمْ وَأَقَامُواْ الصَّلاَةَ وَأَنفَقُواْ مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلاَنِيَةً وَيَدْرَؤُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ أُوْلَئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ (22) جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا وَمَنْ صَلَحَ مِنْ آبَائِهِمْ وَأَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ وَالمَلاَئِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِم مِّن كُلِّ بَابٍ (23) سَلاَمٌ عَلَيْكُم بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ (24) .[3]

ترجمة : او هغه كسان چې صبر كوي لپاره د طلب

---

[1] **سورة الذاريات**

[2] **سورة الحديد آية ١٨**

[3] **سورة الرعد**

د رضا د رب خپل (په مالي او جاني مصائبو يا د شرعي يا د جهاد په تكاليفو) او قائموي (سم اداء كوي له تولو حقوقو په ترتيب سره) مونځ او نفقه كوي (لګوي په لاره د الله كې) ځينې له هغه (حلالو اموالو) نه چې وركړي دي مونږ دوى ته هم په پټه او هم په ښكاره (خفيتاً او ظاهراً) او دفع كوي دوى په نيكي سره بدي دغه كسان موصوف په دغو صفاتو شته دوى ته (ښه) عاقبت د دار (د آخرت چې) جنتونه دي د تل اوسېدلو چې ننوزي به دوى په هغو كې او (ننوزي به پكې بل) اولادې د دوى (اګر كه عمل ئې د هغو په درجه نه وي) او فرښتې به ور ننوزي پر دوى (سره له تحائفو او زيري او رضوان) له هرې دروازې (مانيو د دوى ته او ورته به وايي چې) سلامتيا د وي پر تاسې په سبب د صبر كولو ستاسې (په طاعت او مصيبت او له معصيته) نو ښه عاقبت د دار (د آخرت عاقبت د تاسې دى) .

إِنَّ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَالْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْقَانِتِينَ وَالْقَانِتَاتِ وَالصَّادِقِينَ وَالصَّادِقَاتِ وَالصَّابِرِينَ وَالصَّابِرَاتِ وَالْخَاشِعِينَ وَالْخَاشِعَاتِ وَالْمُتَصَدِّقِينَ وَالْمُتَصَدِّقَاتِ وَالصَّائِمِينَ وَالصَّائِمَاتِ وَالْحَافِظِينَ فُرُوجَهُمْ وَالْحَافِظَاتِ وَالذَّاكِرِينَ اللَّهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتِ أَعَدَّ اللَّهُ لَهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا (35). [1]

ترجمة : بېشكه چې مسلمان سړي او مسلمانې ښځې او مؤمنان سړي او مؤمنانې ښځې او اطاعت كوونكي سړي او اطاعت كوونكې ښځې او رښتين سړي او رښتينې ښځې او صبر كوونكي سړي او صبر كوونكې ښځې او وېرېدونكي عاجزي كوونكي سړي او وېرېدونكې عاجزي كونكې ښځې او خيرات كوونكي سړي او خيرات كوونكې ښځې او روژه نيوونكي سړي او روژه نيوونكې ښځې او حفاظت كوونكي سړي ځاى د شهوت خپل (له پرديو ښځو) او ساتونكې ښځې (ځاى د شهوت خپل له پرديو سړيو) او ذكر كوونكي سړي الله لره (په ذكر) ډېر او ذكر

---

[1] سورة الاحزاب

كونكي ښځې (الله لره په ذكر ډېر) تيار كړى دى الله دغو (لسو واړو جامع الطاعاتو سړيو او ښځو ته) مغفرت او اجر ډېر لوى (جنت) .

## هغه كس چې كبر نه كوي

هغه رښتونى مؤمن چې هر وخت يې په نفس كې عاجزي وي او كبر نه كوي له هغه سره هم د جنت وعده شوېده الله فرمايي : وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ (15) تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ (16) فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاء بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ (17) . [1]

ترجمة : او دوى تكبر نه كوي لرې كېږي ډډې د دوى له ځايونو د خوب (د پاره د تهجد) ) بولي دوى رب خپل (پټ له خلقو نه) له وېرې (د قهره د الله نه) او له طمعې (د رحمت د ده نه) او ځينې له هغو مالونو چې وركړي دي مونږ دوى ته لګوي (ئې په لاره د الله كې) پس نه دى معلوم هېڅ نفس ته (نه فرښتې او نه نبي ته) هغه شى چې پټ كړل شوى دى دوى ته له يخوالي د ستركو نه د پاره د جزاء د هغه عمل چې وو دوى چې كاوه به يې (پټ) .

## د الله ډېر حمد ويونكي

هغه كسان چې د الله حمد وايي له هغوى سره هم د جنت وعده شوېده الله فرمايي : التَّائِبُونَ الْعَابِدُونَ الْحَامِدُونَ السَّائِحُونَ الرَّاكِعُونَ السَّاجِدونَ الآمِرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّاهُونَ عَنِ الْمُنكَرِ وَالْحَافِظُونَ لِحُدُودِ اللّهِ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ (112). [2]

ترجمة : (دوى) توبه كوونكي دي عبادت كوونكي شكر كوونكي (الله ته په اخلاص) بې تعلق پاتې

---

[1] سورة السجدة
[2] سورة التوبة

کېدونکي دي (له دنیوي مزو نه) رکوع کوونکي دي سجده کوونکي دي حکم کوونکي دي په ښېګڼو او منع کوونکي دي له بدو کارونو او ساتونکي دي د حدونو د الله (یعني د هغه د احکامو) او زیری ورکړه (اې محمده ﷺ) مؤمنانو ته (چې موصوف دي پدې صفاتو سره د جنت)

## په زمکه کې فساد نه کوونکي

هغه کسان چې اصلاح کونکي وي او په زمکه کې د فساد کولو هڅه نه کوي او په زمکه کې فساد نه کوي او هغه کسان چې په زمکه کې خپل ځان لوړ نه ګڼي د هغه کسانو سره هم د جنت وعده شویده الله فرمایي : **تِلْكَ الدَّارُ الْآخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ (83)** .[1]

ترجمة : دغه کور د آخرت (چې جنت دی) ورکوو مونږ دا د پاره د هغو کسانو چې نه لري اراده د لوئي (او تکبر) په زمکه کې او نه فساد ظلم کوي (پر خلقو) او عاقبت ښه خاتمه د پاره د پرهیز ګارانو ده.

## ډېري نیکي کونکی

هغه کس چې په قیامت کې یې د نیکیو تله درنده شي او نېک علمونه یې تر ګناهونو درانده شي هغه کسان به هم جنت ته ځي الله فرمایي : **فَأَمَّا مَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ (6) فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ (7)**.[2]

ترجمة : او هغه چې درنده شي تله یې (د نېکو عملونو) هغه به په پداسې عیش کې وي چې خوشحالونکی به وي (دی به پکې خوشحال وي) .

---

1 **سورة القصص**
2 **سورة القارعة**

# امانت او وعده ساتونکي

هغه کسان چې د خلکو په امانتونو کې خیانت نه کوي او خلکو ته د هغوی امانتونه په سمه توګه سپاري او له چا سره چې عهد وکوي د هغه هم ساتنه کوي او په وعدو کې بې وفایي او خیانت نه کوي لدې کسانو سره هم د جنت وعده شوېده الله فرمایي : وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ (32) وَالَّذِينَ هُم بِشَهَادَاتِهِمْ قَائِمُونَ (33) وَالَّذِينَ هُمْ عَلَى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ (34) أُوْلَئِكَ فِي جَنَّاتٍ مُّكْرَمُونَ (35) .[1]

ترجمة : او هغه کسان هم بې صبره او حارصین نه دي چې دوی امانتونو خپلو لره او وعدو خپلو لره ساتونکي دي (او په سر ئې رسوي) او هغه کسان چې هم دوی په شاهدي خپلې باندې سم ولاړ وي (نه یې پټوي او نه پکې کمښت یا زیادت کوي) او هغه کسان چې هم دوی پر مانځه خپل باندې ساتنه کوي (په خپلو وختونو یې اداء کوي) دغه کسان (چې موصوف په پورتنیو آتو صفاتو دي) په جنتونو کې به وي عزتمن .

وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ (8) وَالَّذِينَ هُمْ عَلَى صَلَوَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ (9) أُوْلَئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ (10) الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (11) .[2]

ترجمة : او هغه (کسان هم کامیاب شول) چې دوی امانتونه خپلو لره او عهدونو خپلو ته (که د خالق وي که د مخلوق) رعایت کوونکي دي (چې بیوفایي او خیانت پکې نه کوي) او هغه کسان چې دوی همېشه پر مونځونو خپلو ساتنه کوي (چې تل یې سم اداء کوي سره له ټولو حقونو) هم دغه (مؤمنان چې پورتني یاد شوي شپږ نېک صفات

---

[1] سورة معارج
[2] سورة المؤمنون آية ٨-١١

ولـري) هم دوی دي وارثـان (لا ئقـان نـه نـور څوک) هغه (وارثـان) چې مـيراث بـه اخـلي (جنت د) فـردوس دوی بـه پـه دغه (جنت الـفـردوس) کې تـل پـاتې کېدونـکي وي.

هغه کسان چې په احاديثو کې ورته جنت ياد کړل شوی دی :

## د ديني طالب

هغه کس چې د علم په طلب پسې سفر کوي رسول الله ﷺ د هغه کس لپاره هم جنت ياد کړی دی رسول الله ﷺ فرمايي : **وَمَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَلْتَمِسُ فِيهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللَّهُ لَهُ بِهِ طَرِيقًا إِلَى الْجَنَّةِ ، وَمَا اجْتَمَعَ قَوْمٌ فِي بَيْتٍ مِنْ بُيُوتِ اللَّهِ يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ ، وَيَتَدَارَسُونَهُ بَيْنَهُمْ إِلا نَزَلَتْ عَلَيْهِمْ السَّكِينَةُ ، وَغَشِيَتْهُمْ الرَّحْمَةُ ، وَحَفَّتْهُمْ الْمَلائِكَةُ ، وَذَكَرَهُمْ اللَّهُ فِيمَنْ عِنْدَهُ ، وَمَنْ بَطَّأَ بِهِ عَمَلُهُ لَمْ يُسْرِعْ بِهِ نَسَبُهُ )).** [1]

ترجمة : څوک چې په يوه لاره باندې لاړل او پدې لاره کې يې د علم طلب کاوه الله به ده ته جنت ته لاره اسانه کړي کوم قوم چې په کوم کور کې را ټول شي د الله د کتاب تلاوت کوي او هغه په خپلو مينځونو کې يو بل ته تدريس کوي په هغوی باندې سکينة نازليږي او هغوی په رحمت کې پټيږي ملائک په هغوی احاطه کوي او الله يې په خپل مجلس کې يادوي څوک چې د خپل عمل په واسطه وروسته شي د هغه نسب يې نشي مخکې کولی .

## د جومات جوړونکی

هغه څوک چې د الله د رضا لپاره لوی يا وړوکی جومات جوړ کړي او صرف پدې نيت يې جوړ کړي چې دلته به خلک د الله عبادت کوي رسول الله ﷺ له ده سره هم د جنت وعده کړيده رسول الله ﷺ فرمايي : **مَنْ بَنَى مَسْجِدًا يَبْتَغِي بِهِ وَجْهَ اللَّهِ بَنَى اللَّهُ لَهُ مِثْلَهُ فِي الْجَنَّةِ .** [2]

ترجمة : چا چې جومات جوړ کړو او پدې سره يې د

---

[1] **رواه مسلم**

[2] **صحيح البخاري**

الله رضا مطلب وه الله به ورته همداسې کور په جنت کې جوړ کړي .

## د هر اوداسه نه وروسته مونځ کوونکی

هغه کس چې کله هم د شپې او یا د ورځې اودس وکوي دوه رکعته نفل کوي هغه هم جنت ته ځي رسول الله ﷺ حضرت بلال ته وویل : **يَا بِلاَلُ حدثني بِأَرْجَى عَمَلٍ عَمِلْتَهُ في الإِسْلاَمِ ، فإني سَمِعْتُ دَفَّ نَعْلَيْكَ بَيْنَ يدي في الْجَنَّةِ .**

ترجمة : اي بلاله ماته هغه عمل وښایه چې ستا ورته ډېره تمه وي په اسلام کې ځکه ما په جنت کې په خپله مخ کې ستا د پښو اواز واورېدو .

حضرت بلال ورته وفرمایل : **مَا عَمِلْتُ عَمَلاً أَرْجَى عندي أَنِّى لَمْ أَتَطَهَّرْ طُهُورًا في سَاعَةِ لَيْلٍ أَوْ نَهَارٍ إِلاَّ صَلَّيْتُ بِذَلِكَ الطُّهُورِ مَا كُتِبَ لي أَنْ أُصَلي .** 1

ترجمة : ما هېڅ داسې عمل نه دی کړی چې زما ورته ډېره تمه وي مګر دا چې کله هم زه اودس وکوم د شپې په کوم ساعت کې او یا د ورځې مګر زه د هغه اوداسه نه وروسته خامخا دومره مونځ کوم چې الله ماته لیکلی وي .

[1] **صحيح البخاري**

# له جګړې ، درواغو او بد اخلاقي ځان ساتونکی

هغه کس چې لانجه نه کوي هغه کس چې درواغ نه وايي او هغه کس چې اخلاق يې ښه وي د هغوی لپاره هم د جنت وعده شوېده رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې زه ورته په جنت کې د کور ذمه وار يم رسول الله ﷺ فرمايي : **انَا زَعِيمٌ بِبَيْتٍ فِي رَبَضِ الْجَنَّةِ لِمَنْ تَرَكَ الْمِرَاءَ وَإِنْ كَانَ مُحِقًّا ، وَبَيْتٍ فِي وَسَطِ الْجَنَّةِ لِمَنْ تَرَكَ الْكَذِبَ وَإِنْ كَانَ مَازِحًا ، وَبَيْتٍ فِي أَعْلَى الْجَنَّةِ لِمَنْ حَسُنَ خُلُقُهُ** . [1]

ترجمة : زه د جنت په ماحول کې د يو کور ضمانت کوم هغه چا ته چې لانجه يې پرېښوده اګر که په حق هم وي او زه د يو کور ضمانت کوم د جنت په مينځ کې د هغه چا لپاره چې درواغ يې پرېښودل اګر که په ټوکه کې هم وي او زه د جنت په لوړه برخه کې د يو کور ضمانت کوم د هغه چا لپاره چې اخلاق يې ښه وي .

## په جمع مونځ کوونکی

هغه کس چې مونځونه په جمع سره کوي د هغه لپاره هم رسول الله ﷺ جنت ياد کړی دی رسول الله ﷺ فرمايي : **منْ غَدَا إِلَى المَسْجِدِ وَرَاحَ أَعَدَّ الله لَهُ نُزُلَهُ مِنَ الجَنَّةِ كُلَّمَا غَدَا أَوْ رَاحَ** . [2]

ترجمة : څوک چې په سحر کې او يا په ماښام کې جومات ته لاړو الله ورته په جنت کې مېلمستيا تياروي هر وخت چې دی په سحر يا ماښام کې ځي .

## ډېرې سجدې کوونکی

---

1 **رواه ابو داود**

2 **متفق عليه**

هغه کس چې ډېرې سجدې کوي رسول الله ﷺ د هغه کس لپاره هم جنت یاد کړی دی حضرت ربیعة بن کعب الاسلمي فرمايي : كُنْتُ أَبِيتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَيْتُهُ بِوَضُوئِهِ وَحَاجَتِهِ ، فَقَالَ لِي : سَلْ ، فَقُلْتُ : أَسْأَلُكَ مُرَافَقَتَكَ فِي الْجَنَّةِ ، قَالَ : أَوْ غَيْرَ ذَلِكَ ؟ قُلْتُ : هُوَ ذَاكَ ، قَالَ : فَأَعِنِّي عَلَى نَفْسِكَ بِكَثْرَةِ السُّجُودِ. [1]

ترجمة : ما به شپه د رسول الله ﷺ سره کوله ما به هغه ته د اوداسه اسباب او نور حاجتونه تیارول رسول الله ﷺ راته وویل : سوال وکه څه شی غواړې؟ ما ورته وویل : په جنت کې ستا ملګري غواړم بیا یې راته وویل : نور څه؟ ما ورته وویل دا بس .. بیا رسول الله ﷺ راته وویل : زما سره د خپل نفس باندې زما سره په ډېرو سجدو سره مرسته وکوه (یعني لما سره ډېرې سجدې وکوه پدې سره به تاته جنت درکړل شي) .

## ښه حج کوونکی

هغه څوک چې حج وکوي او په ښه طریقه یې وکوي تردې چې حج یې قبول شي دا هم جنت ته د ننوتلو ذریعه کیږي رسول الله ﷺ فرمايي : الْحَجُّ الْمَبْرُورُ لَيْسَ لَهُ جَزَاءٌ إِلا الْجَنَّةُ . [2]

ترجمة : د قبول شوي حج لپاره بل اجر نشته مګر جنت دی .

## آیة الکرسي تلاوت کوونکی

هغه کس چې د هر مانځه نه وروسته آیة الکرسي تلاوت کوي له هغه سره هم د جنت وعده شوېده

[1] رواه البخاري
[2] رواه البخاري

رسول الله ﷺ فرمايي : مَنْ قَرَأَ آيَةَ الْكُرْسِيِّ دُبُرَ كُلِّ صَلاةٍ مَكْتُوبَةٍ لَمْ يَمْنَعْهُ مِنْ دُخُولِ الْجَنَّةِ، إلا الْمَوْتُ. [1]

ترجمة : چا چې د هر فرض مانځه نه وروسته آية الكرسي تلاوت كوله هغه جنت ته له ننوتلو څخه صرف مرگ منع كوي (يعني دده او د جنت د ننوتلو په مينځ كې صرف مرگ دى كله چې مرگ واقع شي دى به جنت ته لاړ شي)

## سيد الاستغفار ويونكى

سيد الاستغفار يوه دعاء ده هغه كسان چې دا وايي رسول الله ﷺ هغه ته هم جنت ياد كړى دى **سَيِّدُ الِاسْتِغْفَارِ أَنْ تَقُولَ اللَّهُمَّ أَنْتَ رَبِّي لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ خَلَقْتَنِي وَأَنَا عَبْدُكَ وَأَنَا عَلَى عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ أَبُوءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ عَلَيَّ وَأَبُوءُ لَكَ بِذَنْبِي فَاغْفِرْ لِي فَإِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ قَالَ وَمَنْ قَالَهَا مِنَ النَّهَارِ مُوقِنًا بِهَا فَمَاتَ مِنْ يَوْمِهِ قَبْلَ أَنْ يُمْسِيَ فَهُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَمَنْ قَالَهَا مِنَ اللَّيْلِ وَهُوَ مُوقِنٌ بِهَا فَمَاتَ قَبْلَ أَنْ يُصْبِحَ فَهُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ .** [2]

ترجمة : سيد الاستغفار دادى چې ته ووايي اى زما الله ته زما رب يې د تا نه بغير بل معبود نشته تا زه پيدا كړى يم زه ستا بنده يم زه ستا په عهد او وعده ولاړ يم ترڅو چې زما وس وي زه په تا باندې پناه غواړم د شر د هغه څه نه چې ما كړي دي زه تاته ستا د نعمت سره رجوع كوم او د خپلو گناهونو سره او ته ماته زما گناهونه و بښه ځكه گناهونه صرف ته بښې رسول الله ﷺ فرمايل چا چې له يقين سره دا د ورځې وويل نو پدې ورځ چې مړ شي مخكې له ماښام نه نو دا له اهل الجنت څخه دى او چا چې د شپې له يقين سره وويل په همدې شپه كې تر صبا وړاندې

1 **سلسلة الاحاديث الصحيحة**
2 **رواه البخاري**

مړ شو جنت ته به ننوزي .

## په ورځ کې ۱۲ رکعته سنت کوونکی

هغه څوک چې په شپه او ورځ کې دولس رکعته سنت مونځ کوي له هغه سره هم د جنت وعده شوېده او دا همدا سنت دي چې مونږ يې ۲ رکعته سحر ٦ رکعته ماسپښين ۲ رکعته ماښام ۲ رکعته ماسخوتن کوو رسول الله ﷺ فرمايي : **مَا مِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يُصَلِّي لِلَّهِ كُلَّ يَوْمٍ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً تَطَوُّعًا غَيْرَ فَرِيضَةٍ إِلَّا بَنَى اللَّهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنة .**[1]

ترجمة : يو مسلمان بنده چې د الله لپاره دولس رکعته نفلي مونځ وکوي بغير د فرض نه الله د هغه لپاره په جنت کې کور جوړوي .

## له اوداسه نه وروسته دعاء کوونکی

هغه کس چې په سمه توګه اودس وکوي د هغه لپاره هم جنت ياد کړل شوی دی الله فرمايي : **مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ يَتَوَضَّأُ فَيُبْلِغُ - أَوْ فَيُسْبِغُ - الْوُضُوءَ ثُمَّ يَقُولُ أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ إِلاَّ فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ الثَّمَانِيَةُ يَدْخُلُ مِنْ أَيِّهَا شَاءَ .**[2]

ترجمة : هغه څوک چې اودس وکوي او خپل اودس په ښه توګه وکوي بيا ووايي **أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ** دده لپاره د جنت آته دروازې خلاصې شي له کومې نه يې چې خوښه وي داخل د شي .

## د اولاد په جدايي صبر کوونکی

هغه کس چې دده نه وړاندې دده اولاد وفات شي دی

1 **رواه مسلم**
2 **رواه ابوداود**

په هغه باندې په سمه توګه صبر وکوي ددې صبر په بدل کې هم د انسان سره د جنت وعده شوېده رسول الله ﷺ فرمايي : **من احتسب ثلاثاً من صلبه أدخله الله الجنة قالت امرأة واثنان قال واثنان .** [1]

ترجمة : هغه چې صبر وکوي په دريو کسانو باندې چې دده له صلب يعني دده له نسل نه يعني دده اولاد وفات شي الله به هغه جنت ته ننباسي يوې ښځې پوښتنه وکوله او که دوه وي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هو او که دوه هم وي .

[1] **سنن النسائي**

# د يتيم كفالت كوونكى

هغه كس چې د يو يتيم ساتنه وكوي او د هغه كفالت وكوي رسول اللهﷺ فرمايي **أَنَا وَكَافِلُ الْيَتِيمِ كَهَاتَيْنِ فِي الْجَنَّةِ ، وَأَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى.** [1]

ترجمة : زه او د يتيم ساتونكى به په جنت كې داسې وو لكه دا دوه ګوتې سبابة او وسطى ګوتې يې سره يو ځاى ونيولې (يعني په ګوتو سره يې اشاره وكوله چې هغه څوک چې د يتيم پالنه كوي هغه به لما سره په جنت كې داسې ملګرى وي لكه دا دوه ګوتې چې سره يو ځاى دى .

# د بيمار پوښتنه كوونكى

هغه څوک چې بغير د څه دنيايي غرض نه د كوم بيمار پوښتنې ته ورځي دې ته هم رسول الله ﷺ جنت ياد كړى دى حضرت ثوبان د رسول الله ﷺ ازاد كړل شوى غلام وو هغه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **مَنْ عَادَ مَرِيضًا لَمْ يَزَلْ فِي خُرْفَةِ الْجَنَّةِ قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَا خُرْفَةُ الْجَنَّةِ؟ قَالَ جَنَاهَا .** [2]

ترجمة : څوک چې د بيمار پوښتنې ته ورغلو هغه به په خرفة الجنة كې وي چا ورڅخه پوښتنه وكوله چې دا خرفة الجنة څه شى دي يا رسول الله ﷺ هغه ﷺ وفرمايل : دا د جنت هغه ځاى دى چې جنتيان پكې ميوې شكوي .. يعني هغه كس چې پدې نېک عمل كې آخته شي هغه داسې دى لكه د جنت له مېوو نه چې ميوې راشكوي او په يوه حديث كې ورسره د حتى يرجع (تردې چې بېرته را وګرځي) لفظ هم زيات شوى دى .

---

1 **صحيح البخاري**

2 **رواه مسلم**

# له هر مانځه نه وروسته تسبيح ويونکی

هغه کس چې د هر مانځه نه وروسته لس ځله سبحان الله وايي او لس ځله الحمد لله واي او لس ځله الله اکبر وايي لدې سره هم د جنت وعده شوېده رسول الله ﷺ فرمايي : **خلتان لا يُحصِيهِمَا رجلٌ مُسْلِمٌ إلا دخل الْجَنَّةَ ، أَلا وَهُمَا يَسِيرٌ ، وَمَنْ يَعمل بِهِما قَلِيل ، يُسَبِّحُ اللَّهَ فِي دُبُرِ كُلِّ صلاةٍ عَشرًا ، وَيَحْمَدُهُ عَشرًا ، وَيُكَبِّرُهُ عَشْرًا ، قَالَ فَأَنا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْقِدُهَا بِيَدِهِ ، قَالَ : فَتِلْكَ خَمْسُونَ ، وَمِائَةٌ بِاللِّسَانِ ، وَأَلْفٌ وَخَمْسُ مِائَةٍ فِي الْمِيزَانِ ، وَإِذَا أَخَذْتَ مَضْجَعَكَ تُسَبِّحُهُ ، وَتُكَبِّرُهُ ، وَتَحْمَدُهُ مِائَةً ، فَتِلْكَ مِائَةٌ بِاللِّسَانِ ، وَأَلْفٌ فِي الْمِيزَانِ ، فَأَيُّكُمْ يَعْمَلُ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ أَلْفَيْنِ وَخَمْسَ مِائَةِ سَيِّئَةٍ ؟ قَالُوا : فَكَيْفَ لا يُحْصِيهَا ؟ قَالَ : يَأْتِي أَحَدَكُمْ الشَّيْطَانُ وَهُوَ فِي صَلاتِهِ فَيَقُولُ : اذْكُرْ كَذَا ، اذْكُرْ كَذَا ، حَتَّى يَنْفَتِلَ ، فَلَعَلَّهُ لا يَفْعَلُ ، وَيَأْتِيهِ وَهُوَ فِي مَضْجَعِهِ ، فَلَا يَزَالُ يُنَوِّمُهُ حَتَّى يَنَامَ** .[1]

ترجمة : دوه عادتونه دي چې يو مسلمان يې وساتي جنت ته ننوزي خبر دار هغه دواړه اسانه دي او هغه څوک چې عمل پرې کوي د هغه لپاره لږ دي (ډېر وخت نه نيسي او ډېر تکليف نه غواړي) د هر مانځه نه وروسته به لس ځله سبحان الله وايي او لس ځله به الحمد لله ووايي او لس ځله به الله اکبر ووايي صحابي فرمايي ما رسول الله ﷺ وليد چې په لاس يې حساب کول ويل يې دا يو سل او پنځوس دي په ژبه باندې او په تله کې دا يو زر پنځه سوه دي او کله چې تا ډډه ووهله سل ځله به د الله تسبيح ووايې سل ځله به الله اکبر ووايې او سل ځله به الحمد لله ووايې دا په ژبه باندې سل دي او د نيکو عملونو په تله کې زر دي پتاسې کې څوک داسې دي چې په شپه او ورځ کې دوه زره پنځه سوه ګناهونه کوي؟ صحابه وو ورته وويل نو بيا داسې به څوک وي چې دا تسبيح

[1] سنن الترمذي

تحمید او تکبیر به نه پوره کوي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چې په تاسې کې یو کس په مانځه ودریږي شیطان ورته راځي د هغه ذهن بلې خوا ته د اړولو کوښښ کوي ورته وایي دا در یاد کړه ، دا دریاد کړه ، دا دریاد کړه تردې چې د هغه ذهن له مانځه نه بلې خوا ته واړوي او کله کېدای شي پدې ونه توانیږي او کله چې یو انسان د خوب لپاره ډډه ووهي هغه ورته راشي دده د ویده کولو کوښښ کوي تردې چې ویده یې کړي .

## پهړوندوالي صبر کوونکی

هغه څوک چې سترګې یې ړندې وي او دی وربانډې صبر وکوي له هغه سره هم د جنت وعده شوېده حضرت ابو هریره فرماي رسول الله ﷺ فرمایل **يَقُولُ اللَّهُ عَزّ وَجَلّ: مَنْ أَذْهَبْتُ حَبِيبَتَيْهِ فَصَبَرَ وَاحْتَسَبَ لَمْ أَرْضَ لَهُ بِثَوَابٍ دُونَ الْجَنَّةِ** [1] .

ترجمة : الله فرمایي د چا چې زه دوه ګرانې ترې بوزم (دوه سترګې یې ړندې کړم) هغه صبر وکوي او شکایت ونه کوي زه هغه ته د جنت نه بغیر په بل ثواب باندې نه خوشحالېږم (د هغه لپاره مې صرف د جنت ثواب خوښ دی) .

---

[1] **سنن الترمذي**

## غریب ته مهلت ورکوونکی

هغه کس چې په کوم غریب باندې یې قرض وي او د هغه په وس کې دومره څه نه وي چې دده قرض خلاص کړي نو دی هغه ته تر هغه وخته پورې صبر وکوي چې د هغه لاس فراخ شي دې کس ته هم د جنت وعده ورکړل شویده حضرت ابوهریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : كَانَ رَجُلٌ يُدَاينُ النَّاسَ ، فَكَانَ يَقُولُ لِفَتَاهُ : إِذَا أَتَيْتَ مُعْسِرًا ، فَتَجَاوَزْ عَنْهُ لَعَلَّ اللَّهَ يَتَجَاوَزُ عَنَّا ، فَلَقِيَ اللَّهَ فَتَجَاوَزَ عَنْهُ .[1]

ترجمة : یو سړی وو له خلکو سره به یې قرضونه کول بیا به یې خپل نوکر ته ویل کله چې داسې چا ته په قرض پسې ورغلې چې د هغه لاس تنګ وو نو هغه ته تر قرض ور تیریږه کیداى شي الله مونږ ته تر ګناهونو را تیر شي بیا د الله سره مخامخ شو الله تر ګناهونو ور تیر شو .

## په تجارت کې اساني کوونکی

هغه کس چې په تجارت کې سختي نه کوي کله چې کوم شی اخلي او کله چې شی خرڅوي نرم اخلاق کوي او له سختي نه کار نه اخلي له هغه سره هم د جنت وعده شویده رسول الله ﷺ فرمایي : غَفَرَ اللَّهُ لِرَجُلٍ كَانَ قَبْلَكُمْ كَانَ سَهْلا إِذَا بَاعَ ، سَهْلا إِذَا اشْتَرَى ، سَهْلا إِذَا اقْتَضَى .[2]

ترجمة : الله یو کس ته بښنه وکوله چې ستاسې نه وړاندې وو هغه به اساني کوله کله به یې چې کوم شی خرڅول او یا اخیستل او اساني به یې کوله کله به یې چې فیصله کوله.

## سورة اخلاص زیات ویونکی

---

1 صحیح مسلم
2 سنن الترمذي

هغه کس چې سوة الاخلاص (قل هو الله احد) زيات وايي لدې کس سره هم د جنت وعده شوېده حضرت ابو هريره فرمايي زه د رسول الله ﷺ سره روان وم چې له يو کس نه يې واورېدل هغه سورة الاخلاص ويلو رسول الله ﷺ وفرمايل (دده لپاره واجب شو) ما پوښتنه وکوله څه واجب شو؟ رسول الله ﷺ راته وويل جنت .[1]

په بل يو حديث کې رسول الله ﷺ فرمايي : **مَنْ قَرَأَ ( قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ) حَتَّى يَخْتِمَهَا عَشْرَ مَرَّاتٍ بَنَى اللَّهُ لَهُ قَصْراً فِى الْجَنَّةِ )». فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ إِذاً أَسْتَكْثِرَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم )- اللَّهُ أَكْثَرُ وَأَطْيَبُ )** .[2]

ترجمة : چا چې قل هو الله احد وويل تردې چې لس ځله يې ختم کړو الله ورته په جنت کې قصر جوړوي حضرت عمر ورته وويل : که چا زياته وويل يا رسول الله ﷺ؟ رسول الله ﷺ ورته وويل : الله زياتونکی او نور هم ښه ثواب ورکوونکی دی .

---

1 **سنن الترمذي**

2 **مسند امام احمد ابن حنبل**

## له لارې ضرر لرې كوونكى

هغه څوك چې د مسلمانانو له لارې څخه داسى شى لرې كړي چې دوى ته ضرر رسوي ددې كس سره هم د جنت وعده شوېده رسول الله ﷺ فرمايي : إِنَّ شَجَرَةً كَانَتْ تُؤْذِى الْمُسْلِمِينَ فَجَاءَ رَجُلٌ فَقَطَعَهَا فَدَخَلَ الْجَنَّةَ . [1]

ترجمة : بېشكه يوه ونه وه مسلمانانو ته به يې ضرر رسولو يو كس راغلو هغه ونه يې پرې كړه هغه ددې عمل له امله جنت ته ننوتلو .

## دخپلو جينكو پالونكى

هغه څوك چې په ښه طريقه سره د خپلو خويندو او يا خپلو لورانو پالنه وكوي لدې سره هم د جنت وعده شوېده حضرت ابو سعيد الخدري فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : لا يَكُونُ لأَحَدِكُمْ ثَلاثُ بَنَاتٍ ، أَوْ ثَلاثُ أَخَوَاتٍ ، فَيُحْسِنُ إِلَيْهِنَّ إلا دَخَلَ الْجَنَّةَ . [2]

ترجمة : پتاسې كې د كوم يو چې درئ لورانې يا درئ خورانې وي له هغوى سره نيكي وكوي دا كس جنت ته ننوزي .

## سلام خپرونكى او له مسلمانانو سره مينه كوونكى

هغه كس چې په مسلمانانو باندې سلام اچوي كه هغوى پېژني او كه يې نه پېژني او له مسلمانانو سره مينه كوي ددې كس سره هم د جنت وعده شوېده حضرت ابو هريره فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : لاَ تَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا وَلاَ تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا. أَوَلاَ

---

[1] رواه مسلم
[2] سنن الترمذي

أَدُلُّكُمْ عَلَى شَيْءٍ إِذَا فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ أَفْشُوا السَّلاَمَ بَيْنَكُمْ .[1]

ترجمة : تاسې جنت ته تر هغه وخته پورې نه ننوزئ تردې چې تاسې ايمان راوړئ او تاسې ايمان تر هغه وخته پورې نه راوړي ترڅو يو د بل سره مينه وکوئ او زه داسې شی تاسې ته وښايم چې په هغې سره ستاسې په مينځ کې مينه زياته شي؟ په خپل مينځ کې سلام عام کړئ .

## د خاوند اطاعت کونکې ښځه

هغه ښځه چې په روا کارونو کې د خاوند اطاعت کوي او د هغه سره ښه رويه کوي دې ښځې ته هم جنت ته د تلو زيرى ورکړل شوى دى حضرت ام سلمة فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :

أَيُّمَا امْرَأَةٍ مَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَنْهَا رَاضٍ دَخَلَتِ الْجَنَّةَ .[2]

ترجمة : کومه ښځه چې پداسې حالت کې وفات شي چې خاوند يې له دې څخه رضا وي دا به جنت ته ننوزي .

---

[1] رواه مسلم
[2] سنن الترمذي

## له خلکو څخه سوال نه کوونکی

هغه کس چې له خلکو څخه د شیانو سوال نه کوي او کوم شی چې ورسره وي هغه په کار راولي او چې ورسره نه وي نو الله ته صبر کوي ددې کس سره هم د جنت وعده شوېده له حضرت ثوبان څخه روایت دی رسول الله ﷺ فرمایل : **مَنْ يَكْفُلُ لِي أَنْ لا يَسْأَلَ النَّاسَ شَيْئًا وَأَتَكَفَّلُ لَهُ بِالْجَنَّةِ ؟ فَقَالَ ثَوْبَانُ : أَنَا ، فَكَانَ لا يَسْأَلُ أَحَدًا شَيْئًا .** [1]

ترجمة : څوک داسې شته چې ماته ددې ضمانت راکړي چې دی به له خلکو څخه هېڅ شی نه غواړي زه به ورته د جنت ضمانت وکوم؟ حضرت ثوبان ورته وویل : زه بیا به حضرت ثوبان هېڅ شی له چا څخه نه غوښتل.

## د مور پلار سره ښه رویه کوونکی

هغه کس چې مور پلار یې ژوندي وي او دی ورسره ښه رویه کوي د هغوی د خوشحاله ساتلو فکر کوي او د هغوی په خدمت کې کوښښ کوي لدې کس سره هم د جنت وعده شوېده حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **رَغِمَ أَنْفُهُ ، ثُمَّ رَغِمَ أَنْفُهُ ، ثُمَّ رَغِمَ أَنْفُهُ ، قِيلَ : مَنْ يَا رَسُولَ اللَّهِ ؟ قَالَ : مَنْ أَدْرَكَ وَالِدَيْهِ عِنْدَ الْكِبَرِ أَحَدَهُمَا أَوْ كِلَيْهِمَا ثُمَّ لَمْ يَدْخُلْ الْجَنَّةَ .** [2]

ترجمة : تاواني شو بیا تاواني شو بیا تاواني شو ... چا ورڅخه پوښتنه وکوله څوک یا رسول الله؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : هغه چې مور پلار یې پداسې حال کې وو چې بوډا ګان وو یو او یا دواړه بیا هم دی د هغوی د خدمت له امله جنت ته لاړ نشي .

---

1 **سنن ابي داود**

2 **رواه مسلم**

## د ښه زړه لرونکی

هغه کس چې ښه زړه ولري او په زړه کې د چا لپاره څه ډول کینه او دښمني ونه ساتي او د ټولو مسلمانانو لپاره خیر غوښتونکی وي نه له چا سره دښمني کوي او نه له چا سره کینه کوي او نه د چا د نعمتونو له وجې له هغه څخه سوزي بلکه کوم شی چې ده ته الله ورکړې وي پرې خوشحاله وي او چې نورو مسلمانانو ته یې ورکړي وي په هغې هم خوشحال وي او د بل چا نعمتونه ورته سخت نه تماميږي دا کس هم جنتي وي حضرت انس بن مالک فرمايي مونږ له رسول الله ﷺ سره ناست وو رسول الله ﷺ وفرمایل : **يَطْلُعُ عَلَيْكُمُ الآنَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ** (تاسې ته اوس یو جنتي کس راځي) ددې خبرې نه وروسته یو کس راغلو چې له انصارو څخه وو له ږیرې مبارکې نه یې د اوداسه اوبه څڅېدلې خپلې څپلۍ یې په چپ لاس کې نیولې وې کله چې صبا شو رسول الله ﷺ بیا په همدې ډول خبره وکوله بیا هماغه کس په هماغه حالت کې را ننوتلو کله چې دریمه ورځ شوه رسول الله ﷺ بیا هماغه ډول خبره وکوله بیا هماغه کس په هماغه حالت کې را ننوتلو کله چې رسول الله ﷺ له مجلس نه پاڅېدو حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص پدې کس پسې شو دې کس ته یې وویل ما د خپل پلار سره څه خبرې وکولې (خوله مې ورسره ووهله) اوس مې قسم کړی دی چې زه به خپل پلار ته تر دریو شپو پورې نه ورځم کله چې ته خپل کور ته ځې ما به له ځان سره بوزې چې زه لتا سره شپه وکوم؟ هغه کس ورته وویل : هو حضرت انس بن مالک فرمايي بیا حضرت عبد الله مونږ ته قصه کوله چې ده له هغه کس سره درې شپې وکولې هغه د شپې مانځه ته نه پاڅېدو خو صرف کله به چې په بستره باندې وښوریدو او یا به په اړخ واوښتو

نو الله به يې ياد کړو او تکبير به يې وويلو تردې چې د سحر مانځه ته به پاڅېدو حضرت عبد الله فرمايي خو ده به چې کله خبرې کولې صرف ښې خبرې به يې کولې کله چې درې شپې تېرې شوې او زه نېږدې وم چې دده عمل سپک وګڼم ورته مې وويل : اې عبد الله زما او د پلار په منځ کې مو هېڅ ډول غصه او تيزې خبر نه وې شوې خو صرف خبره دا وه چې ما له رسول الله ﷺ څخه واوريدل چې هغه درې ځله ويل : اوس تاسې ته يو جنتي کس را ننوزي او پدې دريو واړو وارونو باندې ته را ننوتلې ما وغوښتل چې زه لتا سره پاتې شم ترڅو وويـنم ستا عمل څه دی بيا زه هم ستا په عمل پسې اقتداء وکوم خو اوس ما ته وليدې چې ته خو څه ډېر عمل هم نه کوې دې مقام ته ته څه شي ورسولې چې رسول الله ﷺ ستا په اړه د جنت ګواهي ورکوي؟ هغه کس راته وويل زما اعمال همدا وو چې تا وليدل کله چې زه ترې روان شوم بېرته يې ور وغوښتم راته يې وويل : زما عملونه همدا وو چې تا وليدل خو يوه خبره بله هم شته چې زه په زړه کې د هېڅ مسلمان لپاره کينه او دښمني نه لرم او چا ته چې الله څه ډول نعمت ورکړی وي زما ورسره کينه نه کيږي حضرت عبد الله ورته ووې بس دا هغه شی دي چې ته يې دې مقام ته رسولی يې او دا مونږ نشو کولی .[1]

[1] رواه ابو داود

## له حيواناتو سره نيكي كوونكى

هغه كس چې له غير ناطقه حيواناتو سره ښه رويه كوي هغوى ته هم جنت ياد شوى دى له حضرت ابي هريره څخه روايت دى هغه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : أَنَّ رَجُلا رَأَى كَلْبًا يَأْكُلُ الثَّرَى مِنْ الْعَطَشِ ، فَأَخَذَ الرَّجُلُ خُفَّهُ ، فَجَعَلَ يَغْرِفُ لَهُ بِهِ حَتَّى أَرْوَاهُ ، فَشَكَرَ اللَّهُ لَهُ ، فَأَدْخَلَهُ الْجَنَّةَ . [1]

ترجمة : يو سړي يو سپى وليدو چې لنده خاوره يې د تندې له امله خوړله هغه سړي خپله موزه را واخيسته په هغه كې يې اوبه وركړې ترديې چې د هغه تنده يې ورماته كړه الله ته دده دا عمل خوښ شو او دا كس يې جنت ته داخل كړو .

## د سحر او ماسخوتن مونځ كوونكى

هغه كس چې د سحر او ماسخوتن مونځ د پابندي سره كوي رسول الله ﷺ دې كس ته هم جنت ياد كړى دى د حضرت ابي بكر بن ابو موسى څخه روايت دى هغه له خپل پلار نه روايت كوي چې رسول الله ﷺ فرمايل : مَنْ صَلَّى الْبَرْدَيْنِ دَخَلَ الْجَنَّةَ . [2]

ترجمة : څوک چې دواړه يخ مونځونه وكوي هغه به جنت ته ننوزي .

---

1 متفق عليه
2 متفق عليه

## د فرج او ژبې ساتونکی

هغه څوک چې خپله شرمګاه او خپله ژبه له ناروا څخه ساتي د هغه لپارهم رسول الله ﷺ د جنت ضمانت کړی دی له حضر سهل بن سعد نه روایت دی له رسول الله ﷺ نه روایت دی چې هغه فرمایل : **مَنْ يَضْمَنْ لِي مَا بَيْنَ لَحْيَيْهِ وَمَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ أَضْمَنْ لَهُ الْجَنَّةَ** .[1]

ترجمة : څوک چې ماته ضمانت وکوي د هغه چې ددوو ږیرو په مینځ کې ده او د هغه چې د دوو پښو په مینځ کې دی زه ورته د جنت ضمانت ورکوم .

## سبحان الله و بحمده ویونکی

هغه څوک چې سبحان الله و بحمده ډېر وایي رسول الله ﷺ د هغه لپاره هم جنت یاد کړی دی له حضرت جابر بن څخه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : **مَنْ قَالَ سُبْحَانَ اللَّهِ الْعَظِيمِ وَبِحَمْدِهِ. غُرِسَتْ لَهُ نَخْلَةٌ فِي الْجَنَّةِ** .[2]

ترجمة : چا چې **سُبْحَانَ اللَّهِ الْعَظِيمِ وَبِحَمْدِهِ** وویل د هغه لپاره په جنت کې خورما نیال کیږي .

---

[1] **صحيح البخاري**
[2] **سنن الترمذي**

# نیک عملونه کوونکی

شپږ داسې نېک عملونه دي چې هغه ټول څوک وکوي د هغه لپاره هم رسول الله ﷺ جنت یاد کړی دی

حضرت عبادة بن صامت فرمایي رسول اللهﷺ فرمایل : " اضْمَنُوا لِي سِتًّا مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَضْمَنْ لَكُمْ الْجَنَّةَ اصْدُقُوا إِذَا حَدَّثْتُمْ - وَأَوْفُوا إِذَا وَعَدْتُمْ وَأَدُّوا إِذَا اؤْتُمِنْتُمْ - وَاحْفَظُوا فُرُوجَكُمْ وَغُضُّوا أَبْصَارَكُمْ - وَكُفُّوا أَيْدِيَكُمْ .[1]

ترجمة : ماته د شپږو شیانو ضمانت راکړئ زه تاسې ته د جنت ضمانت درکوم ١. رښتیا وایاست کله چې خبرې کوئ .

٢. وفا کوئ کله مو چې وعده کوله.

٣. بېرته یې ورکوئ کله چې درته امانت درکول کېدو.

٤. د خپلو فرجونو ساتنه کوئ .

٥. خپل نظرونه ښکته ساتئ (چې په ناروا باندې ونه لګیږي).

٦. خپل لاسونه خلکو ته له ضرر ورکولو نه ساتئ .

په بل روایت کې حضرت ابو هریره فرمایي رسول الله ﷺ وفرمایل مَنْ أَصْبَحَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ صَائِمًا ؟ ، قَالَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ : أَنَا ، قَالَ : فَمَنْ تَبِعَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ جَنَازَةً ؟ ، قَالَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ : أَنَا ، قَالَ : فَمَنْ أَطْعَمَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مِسْكِينًا ؟ ، قَالَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ : أَنَا ، قَالَ : فَمَنْ عَادَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مَرِيضًا ؟ ، قَالَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ : أَنَا ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ

---

[1] رواه الامام احمد

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَا اجْتَمَعْنَ فِي امْرِئٍ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ . [1]

ترجمة : نن چا روژه نیولې ده؟ حضرت ابو بکر ورته ما بیا رسول اللهﷺ وفرمایل : څوک نن د کوم مسلمان جنازې ته ورغلی دي؟ حضرت ابو بکر ورته وویل : زه رسول الله ﷺ وفرمایل : چا نن مسکین ته خوراک ورکړی دی؟ حضرت ابو بکر صدیق وفرمایل : ما رسول الله ﷺ وفرمایل : چا نن د بیمار پوښتنه کړېده حضرت ابو بکر صدیق ورته وویل : ما بیا رسول الله ﷺ وفرمایل دا شیان چې په یو مؤمن کې جمع شي هغه به جنت ته ننوزي .

په بل یو حدیث کې رسول الله ﷺ فرمایي : أَيُّهَا النَّاسُ أَفْشُوا السَّلاَمَ وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ وَصَلُّوا وَالنَّاسُ نِيَامٌ تَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ بِسَلاَمٍ . [2]

ترجمة : اې خلکو سلام خپور کړئ خلکو ته خوراک ورکړي پداسې وخت کې مونځ وکوئ چې خلک ویده وي تاسې به په امن سره جنت ته ننوزئ .

د ښځو لپاره په یو حدیث کې رسول الله ﷺ فرمایي : إذا صلت المرأة خمسها و صامت شهرها وحفظت نفسها و أطاعت زوجها دخلت جنة ربها . [3]

ترجمة : کومه ښځه چې خپل پنځه مونځونه وکوي ، خپله میاشت یې روژه ونیسي او خپل نفس وساتي او د خپل خاوند مطابعت وکوي هغه به د خپل رب جنت ته ننوزي .

## د الله لپاره مینه کونکی

---

1 رواه مسلم
2 سنن الترمذي
3 رواه ابن حبان

هغه کس چې د الله لپاره له بل چا سره مینه کوي له هغوی سره هم د جنت وعده شوېده رسول الله ﷺ فرمايي : **إن المتحابين في الله لتُرى غرفهم في الجنة كالكوكب الطالع الشرقي أو الغربي فيقال من هؤلاء فيقال هؤلاء المتحابين في الله عز وجل .** [1]

ترجمة : بېشکه هغه کسان چې له يو بل سره د الله لپاره محبت کوي د هغوی کوټې په جنت کې لکه ستوري داسې ښکاره کيږي چې په شرق يا غرب کې را ختلی وي ويل کيږي به چې دا څوک دي؟ په ځواب کې به ورته ويل کيږي دا هغه کسان دي چې له يو بل سره يې د الله لپاره محبت کاوه .

## د بازار دعاء ويونکی

د حضرت عبد الله بن عمر څخه روايت دی رسول الله ﷺ فرمايل : څوک چې بازار ته ننوزي او دا دعاء ووايي : **لا إله إلا الله وحده لا شريك له له الملك وله الحمد يحيى ويميت وهو حي لا يموت بيده الخير وهو على كل شيء قدير** الله ورته زر زره نيکي وليکي او زر زره ګناهونه ترې لرې کړي او په جنت کې ورته کور جوړ کړي .

## د مانځه په صفونو کې خاليګاه ډکوونکی

هغه کس چې د جمع په مانځه کې خالي ځای ډکوي او نه پريږدي چې په صفونو کې خالي ځايونه پاتې شي دا هم ډېر غوره عمل دی او ددې عمل کونکي ته هم په جنت کې کور جوړيږي حضرت عائشه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : **إن الله وملائكته يصلون على الذين يصلون الصفوف ومن سد فرجه بنى الله له بيتا في الجنة ورفعه بها**

[1] رواه الامام احمد

**درجه .** [1]

ترجمة : بېشکه الله او د هغه فرښتې درود لېږي په هغه چا باندې چې صفونه سره نښلوي او چا چې د صف خالي ځايونه ډک کړل الله به ورته په جنت کې کور جوړ کړي او ده ته به يوه درجه ور لوړه کړي .

# د ځاښت په وخت ١٢ رکعته مونځ کوونکی

هغه څوک چې د ځاښت په وخت کې ١٢ رکعته نفلي مونځ کوي دده لپاره هم په جنت کې يوه بنګله جوړيږي حضرت انس بن مالک فرمايي ما له رسول الله ﷺ څخه واورېدل چې فرمايل يې : **من صلى الضحى ثنتي عشرة ركعة بنى الله له قصرا من ذهب في الجنة .** [2]

ترجمة : چا چې د ځاښت په وخت کې ١٢ رکعته مونځ وکولو الله به ورته په جنت کې د سرو زرو بنګله جوړه کړي .

---

1 **رواه ابن ماجة**
2 **رواه ابن ماجة**

# ماخذونه


1. القرآن الكريم
2. البرهان في علوم القرآن
3. الإتقان في علوم القرآن
4. تفسير القرطبي
5. تفسير ابن كثير
6. تفسير الطبري
7. تفسير المنار
8. كابلى تفسير
9. صحيح البخاري
10. صحيح مسلم
11. سنن الترمذي
12. سنن النسائي
13. سنن أبي داود
14. سنن ابن ماجه
15. سنن الدارمي
16. سنن الدارقطني
17. شرح النووي على مسلم
18. فتح الباري شرح صحيح البخاري
19. حاشية السندي على ابن ماجه
20. عون المعبود
21. تحفة الأحوذي
22. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح
23. السيرة النبوية (ابن هشام)
24. كتاب الشفا بتعريف حقوق المصطفى

25. زاد المعاد
26. البداية والنهاية
27. جامع العلوم والحكم
28. سير أعلام النبلاء
29. بداية المجتهد ونهاية المقتصد
30. بيان المختصر شرح مختصر ابن الحاجب
31. بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع
32. تحفة المحتاج في شرح المنهاج
33. جمع الوسائل في شرح الشمائل
34. رد المحتار على الدر المختار
35. حلية الأولياء وطبقات الأصفياء
36. فتح القدير
37. البحر الرائق شرح كنز الدقائق
38. الأشباه والنظائر على مذاهب أبي حنيفة النعمان
39. القواعد النورانية الفقهية
40. أنوار البروق في أنواع الفروق
41. مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين
42. الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي
43. موعظة المؤمنين من إحياء علوم الدين
44. القاموس المحيط
45. لسان العرب
46. النهاية في غريب الحديث والأثر
47. مختار الصحاح
48. الحاوي للفتاوي

# د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد د نبوت معجزې
پښتو
2. ړنګه ځاله پښتو
3. آشیانه سوخته
فارسي
4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګلیسي
5. دین یې دام دی ددنیا په لار کې اېښی
پښتو
6. فرار از کزار
فارسي
7. له کزاره تېښته
پښتو
8. زوړ دین نوی مسلمان
پښتو
9. دم دمکو جي او لیکوال
پښتو
10. ادیان پشت در
فارسي
11. له دروازې تر شا دینونه
پښتو
12. د انصاف او اعتدال لاره
پښتو
13. کفري الفاظ
پښتو
14. کل بچه
فارسي
15. معلومات عمومي فارسي
16. د حج لارښود پښتو

او انګلیسي

17. محمد رسول الله سیرت اخلاق او پېژندنه
پښتو
18. د اسلامي تاریخ له پانو څخه اول
پښتو
19. د اسلامي تاریخ له پانو څخه دوهم
پښتو
20. د اسلامي تاریخ له پانو څخه دریم
پښتو
21. د اسلامي تاریخ له پانو څخه څلرم
پښتو
22. د اسلامي تاریخ له پانو څخه پنځم
پښتو
23. د اسلامي تاریخ له پانو څخه شپږم
پښتو
24. د اسلامي تاریخ له پانو څخه اوم
پښتو
25. د اسلامي تاریخ له پانو څخه آتم
پښتو
26. د اسلامي تاریخ له پانو څخه نهم
پښتو
27. د اسلامي تاریخ له پانو څخه لسم
پښتو
28. د فقهي کتابونو له پانو څخه اول
پښتو
29. د فقهي کتابونو له پانو څخه دوهم
پښتو
30. د فقهي کتابونو له پانو څخه دریم
پښتو
31. د فقهي کتابونو له پانو څخه څلورم
پښتو

32. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه پنځم
پښتو
33. د علم حديث مطالعه پښتو
او انګليسي
34. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه شپږم
پښتو
35. کلمه طيبة پښتو
36. الدعاء
پښتو
37. اللهم عربي، پښتو،
انګلسي
38. المسجد
پښتو
39. قرآني معلومات لمړی برخه
پښتو
40. سلام پښتو
41. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه اومه برخه
پښتو
42. د وخت اهميت (لمړی برخه)
پښتو
43. د وخت اهميت (دوهمه برخه)
پښتو
44. د وخت اهميت (دريمه برخه)
پښتو
45. الحکمة ١ پښتو
46. الحکمة ٢ پښتو
47. الحکمة ٣ پښتو
48. الحکمة ٤ پښتو
49. حتمي سفر (مرګ)
پښتو
50. حتمي سفر (شهادت)

پښتو

51. حتمي سفرل (قتل)

پښتو

52. حتمي سفر (ځانکدن)

پښتو

53. حتمي سفر (کفن ، غسل ، جنازه)

پښتو

54. حتمي سفر (قبر)

پښتو

55. حتمي سفر (د قيامت وړې نښې)

پښتو

56. حتمي سفر (د قيامت لوې نښې)

پښتو

57. حتمي سفر (قيامت)

پښتو

58. حتمي سفر (جنت) ستاسې

په لاس کې